# تواریخ

# حافظ رحمت خانی

مؤلف

پیر معظم شاه

دیباچه

پروفیسر محمد نواز طائر

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

# تواریخ حافظ رحمت خانی

مولف

پیر معظم شاه 

دیباچه

محمد نواز طائر

پښتو اکیډیمي پیښور یونیورسټي

د پښتو اکیډیمي د مطبوعاتو سلسله نمبر ۳۱۴

نګران — دائرکټر پښتو اکیډیمي
اول ځل چاپ نیټه — سنه ۱۹۷۱ء
دویم ځل چاپ نیټه — ۱۹۸۷ء
د چاپ ځائے — جدون پریس
تعداد — 24/00 پوزر

په اهتمام د لطف الله خوشنویس په جدون پریس پېښور
کښے چاپ شو ۔ او پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټۍ نه خور شو ۔

موږ د صوبائي حکومت د وزارت تعلیم او بالخصوص
د صوبه سرحد د ګران وزیر اعلی ارباب محمد جهانګیر خان
منّنه کوو چه د هغوئ په خاص پیرزوونه او مالي اعانت
پښتو اکیډیمي د دې جوګه شوه چه دا کتاب یو ځل بیا
خپلو قارئینو ته وړاندې کړي ...

---

بسم اللہ الرحمن الرحیم

نحمدہ ونصلی علی رسولہ الکریم

---

د پښتنو تاریخ په ډیرو کتابونو کښې په مختلفو شکلونو کښې محفوظ کړی شوی دی۔ وجې د دې ئې مرغه د واقعاتو مرکزونه یا خو د جنوبي ایشیا او د کن په سیمه دی او یا بیا د شاهانو او سلاطینو د دربارونو او جنګونو او معرکو سره متعلق دي د پښتون اولس ژوند د دغه واقعاتو سره په حقیقت کښې د ضمنی ترون ترحده دے۔ ځکه چه د اولسونو تاریخ د شاهانو او سلاطینو یا د نو آبادیاتو او مقبوضاتو د تاریخ نه بیخی جدا او ممیز وی۔ د عربو قبائلو د تاریخ په لړ کښې د دے خصوصیت اهتمام موجود دے۔ د پښتنو قبائلو په ضمن کښې محض د نسب نامو تر حده موثره د دے پس منظر سره اشنایو۔ د قبائلو د ژوند د خروج یا سرد بارہ آبادید و پس منظر او پیش منظر ته د تاریخي نقطه نظره ډیر اکم اهمیت ورکړے شوے دے۔ په مقامي تذکرو او تواریخو کښې تش دوه قابل ذکر کتابونه داسے دی چه هغه په دے حقله معلومات لري او تفصیلات بیانوي۔ په دوئ کښې یو کتاب د حضرت اخون درویزه تذکرة الابرار والاشرار دے او دویم اهم دستاویز تواریخ افاغنه دا تلخیص دے چه د تواریخ حافظ رحمت خاني په نوم پیر معظم شاه کړے دے۔

تواریخ حافظ رحمت خاني د سربني قبائلو خصوصاً د بنخي چه پکښې یوسفزي، منډنړ، ګګیانړي او وصلي قبیله محمدزي شامل دی او د دسره د غور یا خیلو یعنی، د خلیلو، مهمند و او داوُد زو د افغانستان نه د کډے کولو او د پیښور په بیدیانونو او د سوات، بونیر او باجوړ په غرشیز د سیمو د دوئ د ابادید و بیان دے۔ د دے کتاب خصوصیات په هر لحاظ ډیر زیات دی نه یواځې دا چه د تاریخي مستناد د هغه د کتاب یو اهم دستاویز دے بلکه د علاقے په حقله د هغه وخت تول جغرافیائي معلومات او د لارو کودرو ذکر اذکار هم پکښې ځائے په ځائے موجود دي۔ څنګه رنګه چه مخکښې ذکر او شو دا یو داسے کتاب دے چه د پښتنو قبائلو د یو دور د انقلاباتو تفصیلات پکښې راوړی شوی دی او د هغه وخت په حقله پکښې ډیر دلچسپ معلومات او عجیبه عجیبه واقعات او پیښے ذکر کړي شوی دی د پښتون اولس د اهمیت

صله رحمي، شجاعت، میړانې، سخاوت او میلمه دوستۍ د صفاتو ډیر دلچسپ عکسونه پکښې په نظر راځي. د پښتنو میرمنو د اوچت کردار او انفرادي صلاحیتونو بیانونه هم پکښې دي. د دغه سبب دې چه دا کتاب د درېمې اشاعت نه پس په ټوله پښتونخوا کښې ډیر مقبول شو. تردې حده چه دروند مشر بنا علي روشن خان په خپلو مصارفو او کوشش د دې کتاب اردو ترجمه هم اوکړه او شائع ئې کړه او دغه شان ئې دا کتاب د اردو دانې طبقې سره هم متعارف کړو. مونږه د خان روشن خان د هغې پېرزوونې او هغې مینې او اخلاص یې پخه ډېره مننه کوو چه هغوئ د دې کتاب په اشاعت او خپرولو کښې عملاً شریکه رسولې دې. دا دې یو ځل بیا الله تعالی دا موقع راوسته چه پښتو اکیډیمي هم دغه کتاب په خپل اصلي شکل کښې دوباره شائع کړي او ګرانو لوستونکو ته دعوت ورکړي چه د پښتون وګړي د تاریخ د دغې دور د حالاتو او مسابقو مطالعه اوکړي او د دې نه د پښتون اولس د ژوند حقیقي تصویر معلوم کړي. زمونږ دا یقین دې چه تواریخ حافظ رحمت خاني به یو داسې دستاویز ثابت شي چه نه یواځې د تاریخ سره دلچسپي لرونکي به ترې استفاده اوکړې شي بلکه د عمرانیاتو سره متعلقه نورې شعبې به ئې هم په خپل خپل نقطهٔ نظر د استفادې جوګه اوګڼي.

زه د صوبائي حکومت خصوصاً د وزیر اعلی ارباب محمد جهانګیر خان او د صوبائي وزارتِ تعلیم د سابق سکتر پروفیسر رشید احمد باچا ممنون یم چه هغوئ په ډېره مینه او اخلاص د دې کتاب د اشاعت د پاره د پښتو اکیډیمي سره مالي مرسته او اعانت اوکړو. زه د پښتو اکیډیمۍ د خپلو هغه ټولو ملګرو خصوصاً د مولوي محمد اسحاق، لطف الله خوشنویس، محمد رسول کاتب، ارشاد کاتب، قاضي حنیف الله پروف ریډر، سرفراز خان لائبریرین، حاجي سید محمد شفیع، محمد انور خان، فدا محمد او د دفتر د نورې عملې او د جدون پریس د اهل کارو هم مننه کوم چه هغوئ ډیره په اخلاص زمونږ سره د دې کار سرته په رسولو کښې تعاون او مدګارتیا اوکړه.

و ما علینا إلا البلاغ

پروفیسر محمد نواز طائر
ډائریکټر
پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

۹، ستمبر ۱۹۸۵ء

# يو څو خبرې

هر سړي خپل طبيعت، مذاق او خوښه لري - د سيرة النبی اولنۍ جلد د مولانا عبدالقادر مرحوم په وخت کښې تر چاپه رسيدلے وو، ددے کتاب ديباچه هم هغۀ په ډير محنت او عقيدت ليکلے وه - خوچه رسا صاحب راغے - نو هغۀ د مولانا صاحب د دغے ديباچې په ځائے خپله ديباچه وليکله او دغے چاپ شوی کتاب سره ئے شامله کړه - اوس دا زير نظر تاريخ چنه ستاسو د وړاندے دے - د دے پيش لفظ رسا صاحب په تلو تاو کښے چاپ کړے وو - او پاتے کتاب بيا د هغۀ د تلو نه وروستو چاپ شوے دے - د دے کتاب اصل د طائر صاحب د کتنے نه اول ما (د ايڼت کولو په نيت) په غور کتلے وو - خو څرګله چه طائر صاحب پخپله دغے قوم (يوسفزيو) سره تعلق لاره او د خپل ملک اولس په حقله ئے معلومات هم زيات وو - ځکه ددے حاشيے وغيره هغۀ وليکلے - هغۀ چه څه خواری او تحقيق پکښے کړے دے ستاسو د وړاندے دے -

زما هم زړۀ غوښته چه ددے کتاب په تاريخي او ادبي حيثيت خپل تاثرات او خيالات څرګند کړم - او اګرچه حق لرم (ځکه چه کتاب د هغۀ نه وروستو چاپ شوے دے) خو بيا هم ماته دا بے مناسبه ښکاری چه د رسا صاحب د "پيش لفظ" په ځائے خپله پڑند ګلو وليکم - او که ځان له جدا څه ليکم نو د چا خبره د بار (اصل کتاب) نه به ئے سر باری درنه شي !

د کتاب په حقله څه نۀ وايم، خو د رسم خط په حقله چا څه نه دي ليکلی - ځکه يو څو اهمے خبرے ګرانو لوستونکو ته

وړاندے کوم، یو خو په اصل نسخه کښے د اوږدے او غونډی ے (ے، ی) څه فرق او بیلتون نه دے شوے، ځ او څ دواړه د 'ځ'، په علامت لیکلی شوی دی ځکه چه په هغه وخت کښے 'څ'، لا نه وو اختراع شوے۔ ددے نه علاوه د لفظ په آخر کښے د 'زونکی' د پاره په 'ه'، باندے همزه نه وو ورکړے شوے۔ یعنی د "زړۀ" په ځائے 'زړه'، او د "شۀ" د پاره 'شه'، وغیره لیکلے شوی وو۔ په اصل کتاب کښے "ن" وو خو د اکیډیمئ د فیصلے مطابق دا "ڼ" ولیکلے شۀ ځنے نورے وړے وړے تبدیلئ هم پکښے شته خو دا دومره اهمے نه دی۔

د دے کتاب په چاپ کولو کښے وخت زمونږ د اندازے نه زیات ولګید۔ خو کوم خلق چه د سټاسی چاپه خانو د ګرانونه واقف دی هغوئی به مونه ګرمه وی۔ خو بیا به هم دومره ووایم۔ چه که د پیش لفظ او یو څو نور مخونه د چاپ د پاره (د فروری نه تر جون پورے) پنځه میاشتے اخلی نو که دا نور کتاب دنے نه پس په نهو میاشتو کښے چاپ شۀ۔ نو دے رفتار ته به ډیر بد نه وایو!

د پښتنو تاریخ لیکونکی او خپله په قام مئین پښتانۀ ګیله من دی چه زمونږ مشرانو خپل تاریخ ته توجه نه ده ورکړے۔ خو د دے کتاب د دریافت نه پس دا څرګندیږی چه دا سے نه ده۔ که دلته نه وی نو د خپل اصل هیواد نه لرے په هند کښے اوسیدونکو پښتنو دا ضرورت ډیر پخوا محسوس کړے وو۔ او د دغے احساس یو نتیجه دا تواریخ حافظ رحمت خانی دے۔ چه پښتانۀ ئے هر څمره وقدروی، ځائے اری۔

ډائرکټر ــ سید خیال بخاری

# پیغام!

تواریخ حافظ رحمت خانی چه یو ډیر اهم تاریخی دستاویز دے او پښتو اکیډیمئی ته د برټش میوزیم لندن نه په لاس راغلے دے۔ دا کتاب د شپاړسمے صدئی په سر کښے د یوسفزو او نورو ملحقه قبائلو د هجرت او سردوباره ابادئی او د شیخ ملی د مشهور تقسیم اذکار لری۔ دا په اصل کښے د هغه مشهور تاریخ افاغنه تلخیص دے چه د خان کجو د تاریخ په نوم یادیږی۔

زهٔ امید کوم چه دا اهم تاریخی دستاویز به د دے سیمے د تاریخ سره دلچسپی لرونکو د پاره بالخصوص او د عامو پښتنو د پاره بالعموم ډیر مفید ثابت شی۔

زهٔ د پیښور یونیورسټئی د پښتو اکیډیمئی ته د تواریخ حافظ رحمت خانی د چاپ کولو د پاره د نوی کلی صوابئی د خان روشن خان دٔ دروند مالی پیشکش د قابل تقلید مثال ډیره مننه کوم۔ او هیله لرم چه نور مخیر پښتانهٔ مشران به هم په دے میدان کښے د دے ادارے سره دغه شان مالی ملګرتیا ته ملا اوتړی۔

عبدالهاشم

وائس چانسلر، پیښور یونیورسټی

# پیش لفظ

د پښتنو تاریخ لکه د پښتو ژبې او د پښتو د ادبیاتو د تاریخ په شان، لا په تیرو کښې پروت دے او ډیر تحقیق طلب او غور طلب دے ـ ډیر تاریخونه د پښتنو په حقله لیکلی شوی دی او په دے کښې څه پښتنو خپله او څه غیر پښتنو لیکلی دی او چه کوم پښتنو لیکلی دی، په هغو کښې هم ډیر په فارسئ ژبه دی او ځکه ئے پښتانهٔ نهٔ شی لوستلے ـ خو په دے تاریخونو کښې لوئے کمے دا دے، چه ځنې وخت واقعات د لا علمئ په وجه افسانوی شکل اختیار کړی او ځنې وخت حقیقی واقعات قصداً څه په داسے طریقه مات ګوډ کړے شی، چه د یو خاص غرض تابع کړے شی او اصلی واقعات د خلقو د نظر نه پټ کړے شی ـ

که تاریخ دان په دے خیال تاریخ لیکلو ته کښیني، چه د اول نه په خپل ذهن کښې یوه غرضی یا متعصبانه تاریخی نظریه جوړه کړی او بیا د خپلے نظرے د ثبوت د پاره صرف هغه تول تاریخی واقعات او شواهد راغونډ کړی کوم چه د مصنف نظریے ته شپتی ورکوی ـ او هغه تول واقعات، کوم چه د مصنف د تاریخی نظریے خلاف وی ،

یا خو بالکل نظرانداز کړی او یا ئے په داسے طریقه پیش کړی چه اصلیت او حقیقت ئے مسخ شی، نو د دے نه تاریخ نه، بلکه د پروپیګنډے یو داسے پمفلټ یا کتاب جوړ شی، چه د حقائقو په رڼړا کښے ورته هیڅوک د تاریخ یو مستند کتاب نهٔ شی وئیلے ـ

پکار خو دا ده، چه تاریخ دان که د یو قوم یا د یوے واقعے تاریخ لیکی، نو خپل ذهن دِ له هر قسمه تعصب نه خالی کړی ـ او بیا دِ په غیر جانبدارانه او د انصاف په نظر، د مختلفو شواهدو او اسنادو مطالعه شروع کړی ـ او د شواهدو او اسنادو د لوستو سره سره، چه له هر قسمه نظریه د هغهٔ په دماغ کښے جوړه شی او ځائے اونیسی، د هغے په رڼړا کښے د واقعاتو، اشخاصو او سیاسی او معاشرتی ماحول جائزه دِ واخستے شی ـ او صحیح استنباط دِ اوکړے شی ـ دا نه چه بخپله په او د بل بده، خپله درنه او د بل سپکه، د خپلو تاریخی معلوماتو محور او مرکز اوګرزئی ـ

غرض مے دا وو چه تواریخ حافظ رحمت خانی ستاسو په وړاندے دے ـ د دے مشهور تاریخ د لوستو نه پس تاسو به بخپله اندازه اولګوئی، چه په دے تاریخ کښے څه خو بیانے او څه خامیانے دی ـ خو دومره خبره ضرور ده، چه دا تاریخ د پښتنو د یوے درنے او لوئے قبیلے یعنی یوسفزواو ورسره ورسره د څه نورو قبیلو په تاریخ هم محققانه او مستنده رڼړا اچوی ـ او د ډیرو تاریخی واقعاتو

غیر جانبدارانه څیړنه کوی ۔ دا د یوے محدودے عرصے تاریخ دے، خو هم دغه عرصه د یوسفزو د تاریخ، نه یوازے یوه نازکه مرحله ده، بلکه څنے متنازع فیه واقعات هم لری ۔ چه تاریخ دانو د خپلو خپلو مقاصدو په غرض په خپل خپل رنګ کښے بیان کړی ذی ۔

هر چا ته معلومه ده، چه پښتون قام د پاک و هند په تاریخ کښے یو اهم کردار ادا کړے دے او په دے وجه د پاک و هند په بر صغیر کښے، ځائے په ځائے په لکونو پښتانهٔ آباد شوی دی او تر اوسهٔ آباد دی ۔ د دے پښتنو په هندوستان کښے د ټخوا راسے یو قدیم مرکز روهیلکنډ دے او د روهیلکنډ د پښتنو د تاریخ د مطالعے نه وانجه ده، چه دا ډیر کلک او په پښتو او پښتون میڼ پښتانهٔ ؤو ۔ تر ډیرے مودے خو دوئ خپله مورنئ ژبه هم را تینګه کړی وه ۔ او په خپل کور کښے به ئے پښتو وئیله ۔ خو رو رو د ماحول اثر، د زمانے ګردش او د وخت خونړی چپاؤنو ورنه خپله ژبه هیره کړه، د دوئ نه پښتو ژبه خو هیره شوه ولے "پښتو" ئے تینګه اوساتله یعنی د پښتو دودونه، دستورونه، رسمونه، پت، مړانه، غیرت، شجاعت، سخاوت، ننګ او افتخار ئے قائم اوساتو ۔

د روهیلکنډ د پښتنو یوه درنه د مشرئ، نوابئ او خانئ کورنئ د نواب حافظ رحمت خان کورنئ وه ۔ نواب حافظ رحمت خان هغه ننګیالے دے، چه د پانی پت په دریم فیصله کن جنګ کښے د احمد شاه ابدالی په پړه، د اسلام

او پښتو په نوم جنګيدلي دے - او د خپلے اسلام پرورئ او پښتون والئ حق ئے په ښۀ شان ادا کړے دے - د پانی پت دریم جنګ د پاک و هند په تاریخ کښے هغه مشهور تاریخی جنګ دےچه که په دے کښے په اسلام میئن پښتون بادشاه احمد شاه ابدالی د مرهټيانو د لاسه شکست خوړلے وے - نو نن به په برِ صغیر کښے د دارو د پاره هم چا مسلمان نۀ شو پیدا کولے او تاریخ به یو داسے رُخ اخستے وو چه د برِ صغیر د تقسیمدو به هډو سوال نۀ وو پیښ شوے - د هند په دوو قومونو کښے یعنی په هندو او مسلمان کښے وېشل، او بهارت او پاکستان جوړیدل، د احمد شاه ابدالی د مړانے او تورے برکت دے، او په دے وجه د تاریخی لحاظ نه د پاکستان اولنے اصلی مؤسس احمد شاه ابدالی دے او د احمد شاه ابدالی سره په دے عظیم جهاد کښے د لوئے اسلامی سلطنت لوئے کمک د روهیلکنډ ننګیالو پښتنو او د هغوئ مشر نواب حافظ رحمت خان روهیلی کړے دے -

پښتو اکیډیمی ته دا فخر حاصل شو چه د نواب حافظ رحمت خان د پښتنو تاریخ په اول ځل د چاپ په شکل کښے تاریخ دوسته او علم دوسته خلقو ته پیش کوی - چونکه د اکیډیمی خپل مالی وسائل د نشت برابر دی، په دے وجه د دے کتاب د چاپ کولو انحصار که د اکیډیمی په مالی وسائلو وے، نو شاید چه دا قابلِ قدر تاریخی کتاب به نۀ وے چاپ شوے - خو په پښتو کښے

هم ځنې وخت داسې علم دوسته سخيان پيدا شي، چه د خپلو مشرانو علمي او ادبي پنګې طرف ته هم توجه او کړي ـ او په دې نيک کار هم پيسې لګول خپل فرض او ګنړي ـ په داسې ښو ځوانانو کښې، يو د صوابئي د تحصيل دنوی کلي روشن خان دے ـ خان موصوف ته چه معلومه شوه چه د نواب حافظ رحمت خان تاريخ د پيسو د خوارئ د کبله پښتو اکيډيمئ نۀ شي چاپ کولے، نو لکه د يو درونـد پښتون نے خپله يوه ورځ اکيډيمئ ته تشريف راوړو او په چپه خوله ئے يو کثير رقم د اکيډيمئ ډائرکټر ته د مذکوره مقصد د پاره ورکړو ـ

مونږ د روشن خان ډيره ډيره مننه کړو او د دوئ شکريه ادا کوو ـ که دوئ دے کار خير ته ملا نۀ وے تړلے، نو مونږ نه به دا اهم کار پاتے وو ـ شکر دے چه په پښتنو کښې هم يو نيم کس داسې پيدا شي چه د خرافاتو او لغوياتو د خدمت په ځائے د علم د خدمت د پاره ملا اوتړي ـ خدائے د کړي چه د روشن خان په شان يو څو نور ښۀ ځوانان هم پيدا شي، چه د اِکيډيمئ سره څۀ کم زيات دوه پنځوس کتابونه چه د چاپ د پاره تيار پراتۀ دي، خو د مالي مشکلاتو په وجه د چاپ نه محرومه دي، په ښه طريقه چاپ کړي او دغه شان د پښتنو د مورنئ ژبے پښتو نه يوه علمي او ادبي ژبه جوړه کړي ـ ګورو، چه په کلهمه پښتونخوا کښې چه څه کم زيات يو نيم کروړ ابادي لري، د روشن خان تقليد ته څوک راوړاندے کيږي ـ اے

ځوک شته؟ او که نه زمونږ دا خواست به د صحرا چغه شي ـ

زۀ د محمد نواز صاحب طائر، چه زمونږ د پښتو اکيډيمۍ غړے او اسسټنټ ريسرچ افسر دے، هم شکر ګذار يم چه دوئي په ډير کوشش سره دا تاريخ اوکتو او د دے په حقله ئې يوه عالمانه مقاله د لوستونکو د استفادے د پاره اوليکله ـ دا مقاله هم د دے کتاب سره چاپ کيږی ـ او اميد دے چه د لوستونکو به خوښه شي ـ

د حافظ رحمت خان د تاريخ اصل نسخه په زړه طريقه ليکلې شوې دہ ـ او په دے کښے د مضمون په مناسبت سره لکه نن ورځ چه رواج دے پيراګرافونه نۀ وو ـ خو يو روان تحرير به وو او مضمون که هر اړخ به اخستو، بيلتون ورکښے د لوستونکي د پاره ګران وو ـ اکيډيمي دا مناسب اوګنړل چه دا د موجوده زمانے د تحرير د طرز مطابق سم کړی او رواني او ربط ئې قائم شي ـ

يو بل بدعت پکښے هم مونږ په خپل خيال د ضرورت مطابق کړے دے او هغه دا چه د ياۓ مجهول ضرورت چه کوم ځائے محسوس شوے دے، هغه مونږ په قوسينو کښے ورکړے دے چه په اصل نسخه کښے نشته ـ

ځنے پښتو الفاظ چه اوس تقريباً متروک دی مونږ د هغے ترجمه په حاشيه کښے ورکړے دہ ـ نور کتاب په خپل

اصلي شکل کښې چاپ کیږي او څه تبدیلي ورکښې زمونږ له طرفه نۀ ده راغلې -

زۀ د پښتو اکیډیمۍ د غړو مولانا محمد اسرائیل، میاں سناءالدین، محمد انور خان او سیف‌الرحمان سید ډیره شکریه ادا کوم، چه د دې کتاب په تصحیح، مقابله، فوټو سټیټ اخستلو او پروف لوستلو کښې ئې محنت کړے دے او کتاب ئې د دې جوګه کړے دے چه لوستونکو ته په یو ښۀ شکل کښې پیش کړے شي -

میاں سید رسول رسا
ډائرکټر پښتو اکیډیمي
پېښور یونیورسټي

۲۶ فروري ۱۹۷۰ ء

# دیباچه

**په تواریخ حافظ رحمت خانی یو نظر** | د تواریخ حافظ رحمت خانی دا نادره نسخه چه تر څو د برټش میوزیم نه پښتو اکیډیمی ته نۀ وه را رسیدلې تر هغې دا عام خیال وو، چه دا کتاب په فارسئ کښې لیک دے۔ د دے خبرے استناد به عموماً د مستشرقینو د تحریرونو نه ورکولے کیدو۔ د دے غلط بیانئ ابتدا لکه چه د میجر راورټی نه شوے وی او نورو کسانو هم په خپله د تحقیق کولو په ځائے په دغې اکتفاء کړے ده۔ په دوئ کښې د ټولو نه وروستے مستشرق، د "دی پټهان" نومے مشهور کتاب لیکونکے ښاغلے سراولف کیرو دے*۔ چه هغه هم د دے کتاب په ژبه د فارسی گمان کړے دے۔ ځکه چه که دۀ په خپله دا کتاب لوستے وے نو تش د میجر راورټی** په حواله به ئے دا نۀ لیکل چه چه کښے تواریخ حافظ رحمت خانی د شیخ ملی او خان کجو د لیکلی هغه پخوانی نایاب نثر په کتابونو بنا لری۔ او دوئ دواړه د شپاړسمے صدئ عیسوی په وړومبی سر کښې

---

* دی پټهانز صفحه ۱۶۹ —

** د میجر راورټی د خپل لاس لیکلے نوټ چه د قلمی نسخے په سر کښې موجود دے هم د دے کتاب سره ورکړے شوے دے —

د یوسفزو سرداران وو ۔ بلکه په دے حقله به ئے څه ذاتی
نظریه هم قائمه کړے وه ۔ او د بابر بادشاه او بی بی مبارکے
د وادهٔ د واقعے نه به ئے هم افسانه نهٔ وه سازه کړے ۔

د بناغلی کیرو په کتاب کښے څینے واقعات خو داسے
ذکر شوی دی چه هغه د تواریخ حافظ رحمت خانی د بیاناتو
سره مطابقت خوری خو د څنو تطبیق ورسره نهٔ کیږی او
داسے ثابتوی چه په خپله دا کتاب د هغهٔ په مطالعه کښے
نهٔ دے راغلے* ۔

یو بل مستشرق د تواریخ حافظ رحمت خانی په حقله
لیکی چه :-

"دا کتاب حافظ محمد صدیق نومے یو مؤرخ په ۱۱۸۴ء
کښے په فارسئی کښے لیکلے دے ۔ دا د یوسفزو تاریخ دے چه
د دوئی په کابل، باجوړ، سوات، پیښور، لنګر کوټ او په
خواؤ شا اضلاعو د قبضے کولو واقعات پکښے بیان شوی
دی ۔ د دے ماخذ د پښتنو هغه تاریخ دے، چه مشهور
پښتون مؤرخ او ماهر انساب، خان کجو په پښتو کښے
لیکلے دے ۔ د دے موجوده کتاب مؤلف حافظ محمد صدیق لکه
چه په خپله ذکر کوی، په اټک کښے د ننتو نومے کلی
اوسیدنکے وو ۔ د هغهٔ دا کتاب په دے ابوابو مشتمل دے ۔

---

* موصوف ما ته په یو خط کښے د دے کتاب په خپله
د نهٔ لوستو اعتراف کړے دے ۔ (طائر)

(۱) د یوسفزو کابل ته هجرت او د مرزا الغ بیگ د لاسه د یوسفزو مشرانو قتل عام۔

(۲) د دوئی پینبور ته راتلل او په دوابه او باجوړ قابض کیدل ۔"

د تواریخ حافظ رحمت خانی په حقله د داسې غیر محتاط بیان نه دا اندازه لگیدے شي چه مستشرقینو به هم په صحیح معلوماتو را جمع کولو زیات سرخوږے او زیار نهٔ کولو ۔ د دے نتیجه دا راوتے ده چه نهٔ یواځې دا چه د دے کتاب د ماخذونو او مؤلف په حقله صحیح معلومات دنیا ته نهٔ دی وړاندے کړی شوی، بلکه هغه واقعات چه په دے کښې ئے تفصیلی ذکر موجود دے هم په غلط یا افسانوی رنگ کښې په تاریخونو کښې منضبط کړی شوی دی ۔ لا د خوند خبره پکښې دا ده چه په استناد کښې ئے حوالے د تواریخ حافظ رحمت خانی ورکړے شوی دی ۔

بیشکه چه د دے تاریخ واقعات د یو مختصر دور پورے محدود دی، خو دغه د شمار څو کلونه د سړبنی قبیلو خصوصاً د غوریا خیلو او ښخےزیو او په تیره تیره د یوسفزو د قبائیلی تاریخ د تولو نه اهم باب دے ۔

په دے کتاب کښې هغه واقعات موجود دی، چه په دغه څو کلونو کښې په بین‌القبائیلی کشمکش کښې او د مغل بادشاه الغ بیگ او یوسفزو تر مینځه پیښ شوی

دی او د هغه واقعاتو ذکر هم پکښې من و عن موجود دے چه د بابر بادشاه او یوسفزو د تعلقاتو محرک گرزیدلی دی -

د کتاب مؤلف د نلتو کلی حافظ محمد صدیق نه، بلکه د پیرسباک کلی پیر معظم شاه دے - دے د کتاب په دیباچه کښې وائی چه څه وخت چه حافظ رحمت خان ته دا کتاب چه مسوده ئې د اخون درویزه رحمة الله علیه د تذکرة الابرار والاشرار په طرز لیکلے شوے وه، د شاه جهان پور د نواب خان بهادر خان غوریاخیل د اوډزی د کتبخانے نه راواستولے شوه او هغوئی اولوستله، نو کتاب ئې د تاریخی دستاویز په حیثیت ډیر خوښ شو - خو د بے ځایه تکرار او تصنع له کبله - ئې په مسوده نظر ثانی کول ضروری او کنټرول او کومے بے ځایه خبرے یا تکرار چه پکښې موجود وو د هغې د لرے کولو او د عبارت د تصحیح په غرض ئې پیر معظم شاه ته حواله کړو - منشا ئې دا وه چه که دا کتاب د عامو لوستونکو د فائدے په خاطر آسان کړے شي او مقصد ئې هم فوت نۀ شي نو ډیره به ښه وی - هم د دے حکم په تعمیل کښې د هغې مسودے نه دا کتاب چه په تواریخ حافظ رحمت خانی نوم یادیږی، ساز کړے شو -

د اصل مسودے، یعنی تواریخ افاغنه د مصنف نوم خواجو ملیزے وو - دغه مسوده لکه چه د تواریخ خان کجو په نوم هم شهرت لری - خواجو مؤرخ د خان کجو په مصاحبینو کښې وو او په خپله یوسفزے وو، چه د خان

کجو د وفات نه پس هم ژوندے وو، او دا کتاب چه د
خان کجو د وفات ذکر هم لری دا سے ښکاری لکه چه د
هغهٔ د وفات نه پس د هغهٔ د یادګار په طور لیکلے شوے
او هغهٔ ته منسوب کړے شوے وی؛ ځکه چه هم دغه
تواریخ افاغنه لکه چه د تواریخ خان کجو په نوم شهرت
لری ، پیر معظم شاه په خپله خواجو ته د دے کتاب
مصنف اول وائی ـ او د تبرک د پاره ئے د هغهٔ یؤلس
اشعار هم د دے کتاب د مبداء په رنګ کښے راوړی دی
د اشعارو د انداز بیان نه د اصل مسودے د ژبے صحیح
اندازه لګیدے شی لکه چه وائی ــ

ځار تر خدایه شم په دا هسے قدرتونه
چه آدم حوا لا نهٔ وو، تا هالهٔ کښل تلمونه

قدرتونه دے ښکاره کړهٔ
تا پیدا کړهٔ اووهٔ زمکے اسمانونه

د غے زمکے قرار نهٔ کړو
تا پرے کیښول درانهٔ لوئے غرونه

تر دے غرونو ډیر درانهٔ دی
معتبر د دین سړونه

د سړونو ځائے دے جوړ کړهٔ
د ګور غار تنګه کوررونه

هغه ځائے لره به ورشو
چه نهٔ لار لری نهٔ ورونه

تواریخ حافظ رحمت خانی په اووهٔ بابه مشتمل دے، چه مؤلف ورته مقامات سبعه (اووهٔ مقامونه) ویلی دی - د دوئی سرخطونه په فارسی کښے دی* هر مقام مختصراً دا دے -

مقام اول :- ذکر اوطان اصلی اقوام بنځے وغوری -

مقام دوم :- ذکر رسیدن یوسفزی به پشاور و یافتن ملک دوآبه و باجوړ -

مقام سیوم :- متوجه شدن یوسفزی به ملک سوات و آمدن بابر بادشاه -

مقام چهارم :- آمدن گگیانی به ملک دوآبه -

مقام پنجم :- جنگ تکیانی و دلزاک -

مقام ششم :- قسمت کردن شیخ ملی ممالک ماخوذه را-

مقام هفتم :- عبور شدن یوسفزی از دریائے لنډی و جنگ کردن ایشان با غوریاخیل -

هر مقام بیا په وړو وړو فصلونو تقسیم دے، او دغه رنگ خوا ؤ شا هغه اهم واقعات چه د ۸۸۰ هجری، مطابق

---

* په پښتو ادب کښے د پخوا راسے دا دستور راغلے دے چه د کتاب د هر باب عنوان به په فارسئ کښے لیکلے کیدو - کیدے شی چه په دے وجه د تواریخ حافظ رحمت خانی په ژبه د فارسئ گمان شوے وی -

۱۴۷۵ عیسوی کال او د ۹۹۳ هجری، مطابق ۱۵۸۵ عیسوی کال تر مینځه چه د ښخي او غوري قبائیلو سره تعلق لري پکښې لیک دي ـ

مختصره څیړنه: په کتاب کښې ځائے په ځائے د هجري سن د ځینو تاریخونو ذکر موجود دے چه د کتاب تواریخ افغنه د لیک د نیټې اندازه ترے کیدے شي ـ لکه چه وړومبنے مؤلف په یو ځائے کښې وائي، چه اوس پروس کال چه سن الف واحد و ثلثین هجري وو ـ یعني ۱۰۳۱ ھ وو ـ د دے نه معلومیږي چه دغه کتاب په ۱۰۳۲ ھ مطابق ۱۶۲۲ عیسوی کښې یا د دے نه مخکښې زیر تصنیف وو ـ او په ۱۰۳۳ ھ مطابق ۱۶۲۳ عیسوی کال کښې سر ته رسولے شوے وو ـ مورخ خواجو وائي چه ـــــ

و اولاد شاه منصور ابن العم ملک احمد نیز درین وقت چند کس در هندوستان در خدمت نورالدین محمد جهانگیر بادشاه هستند ـ

یعني د ملک احمد د تره د ځوی شاه منصور په اولاد کښې یو څو کسان لا نن هم په هندوستان کښې د نورالدین محمد جهانګیر بادشاه په دربار کښې دي ـ هم د دے نه لیږ وړاندے وائي چه ـــــ

چنانچه از آنجمله سودا نام چه د ملک زیو ملک دے او ډیر موتر معمر دے، نن ورځ چه سن هجري زر درے

دیرش (۱۰۳۳ھ) دے، حیات دے ۔

یو بل ځائے کښے وائی چه ـــــ

دریں وقت که سن الف و ثلث و ثلثین است ۔

یعنی ۱۰۳۳ھ مطابق ۱۶۲۴ عیسوی کال دے، نو د دے نه دا صفا څرګندیږی چه تواریخ افاغنه په دوه کاله یا څه زیات وخت کښے لیکلے شوے دے ۔

د خوند خبره پکښے دا ده چه سره د دے چه تواریخ افاغنه د اکبر بادشاه د وفات نه خوا وُشا اتلس کاله ورستو لیکلے شوے معلومیږی، ولے بیا هم په کتاب کښے د هغه تاریخی جنګونو او واقعاتو هیڅ ذکر نۀ دے موجود، چه د دعلی د مغلیه حکومت او یوسفزو تر مینځه پیښ شوی وُو ۔ په دے واقعاتو کښے یوه اهمه او لویه تاریخی واقعه په باجوړ، سوات او بونیر د اکبر بادشاه د فوځونو یلغار او د هغوئ عبرتناک انجام وو ۔ خو مؤرخ لکه چه د کتاب موضوعات د خان کجو تر وفاته محدود ساتلی وی نو ځکه ئے د ما بعد پیښیدونکو واقعاتو څه ذکر نۀ دے کړے*
بیا هم کله کله ئے د وضاحت په خاطر د خپلے زمانے د سنونو لکه ۱۰۳۲ - ۳۳ ذکر بیا بیا کړے دے ۔

---

* داسے معلومیږی چه خان کجو د اکبر بادشاهؒ د دور حکومت په اوائیل کښے یا د دے نه څه اګاهو وفات شوے وی ۔

د تاریخی واقعاتو سره سره د ښځی، غوری او دلزاکو د مشرانو او خیلخانو ذکر هم پکښې موجود دے چه ددے قبائیلو د نسب نامو د کیفیت تصدیق پرے کیدے شی ـ د دے نه علاوه پکښې د څینو سیاسی مصلحتونو وضاحت هم کیږی او د هغه اهمو او تاریخی لارو ګودرو او مقاماتو قصباتو او کلو پوره پوره تفصیل پکښې هم موجود دے، چه نن ورځے یا خو څه اهمیت نهٔ لری، او یا بیخی غیر آباد شوی دی ـ

د کتاب د مطالعے په وخت کله نا کله د لوستونکی دا خیال را پیدا شی: چه ګنے د دغه دور نه وړستو په مغلیه او فیرنګی دور کښې هم د دے د ماخذونو نه سیاسی او جنګی بصیرت حاصل کړے شوے وی ـ

د یو بنهٔ تاریخی روداد نه علاوه په دے کتاب کښې د پښتون اولس د کردار، پښتونولئی، ملی تعصب او ننګ ناموس ډیر په زړهٔ پورے واقعات او مثالونه لیکلی شوی دی ـ که د څنو تاریخ لیکونکو لکه سر اولف کیرو او بهادر شاه ظفر کاکاخیل دا کتاب د نظره تیر شوے وے نو شاید چه کیرو صاحب په خپل دے خیال چه "زهٔ د یوسفزی مؤرخینو بیانات زبات ثقه ګنړلو ته داسے نهٔ یم تیار" ـ * او یا ظفر کاکا خیل په خپله دے وینا دوباره غور کړے وے چه :ـ

"میرزا الغ بیګ د بابر ترهٔ وو او د یوسفزو د بابر سره

* دی پټهان صفه ۱۸۹

تعلقات ووـ لکه چه د ملک شاه منصور (چه د ملک سلیمان‌شاه ځوی ووـ)لور بی‌بی مبارکه بابر ته وادهٔ شوی وه ـ بابر یو ډیر صاف‌کو او سپین زړی انسان ووـ هغهٔ خپل ټول واقعات په ډیری صفائیی لیکلی دی، نو که چری د میرزا الغ بیگ د لاسه د یوسفزو د نههٔ سوه مشرانو د قتل افسانه او د دی قبائیلو د مهاجرت واقعه په حقیقت کښی شوی وی، نو یقیناً بابر به د هغی ذکر کړی وو ـ ولی بابر د دی واقعاتو په باب کښی قطعی خاموش دی ـ د دی نه دا قیاس کیدی شی چه دا واقعات د مبالغی نه خالی نهٔ دی ـ *

د دی کتاب د مطالعی نه پس چه لوستونکی په دی بیانـاتو خیال اوکړی، نو یوه خبره قدرتاً ذهن ته راشی چه د یکطرفه بیانونو نه نتائج اخذ کول اویا تش په حدسیاتو، د تواریخو په میدان کښی پـه ځینـو واقعاتـو خپلـه رائـ ځرګندول، د اصول تاریخ د قواعدو نفی کول دی، او پـه حقائقو کښی داسی کجی راوستل دی چه د طرفدارئ بوئی تری راځی، او هم دغه شی د یو ښهٔ مؤرخ د شان سره نه ښائی ـ

د تواریخ حافظ رحمت خانی ماخذ یعنی تواریخ افاغنه، د خپل وخت د یو آزاد او بی نفسه مؤرخ لیک دی ـ دا نهٔ خو د بابر د خودنوشت سوانح عمرئ په رنګ کیدی

---

* پښتـانهٔ د تاریخ په رڼرا کښی صفحه ۱۳۱۰

شو چه د لیکونکی خپل ځان پکښې د ټولو واقعاتو محور وو او نهٔ د درباری مورخینو کتاب، چه د دربار دارئی پابندیانے او مجبوریانے ورسره تړلے وے، بلکه دا د پوره قبیلے تاریخ وو چه افراد پکښې د کردارونو په دود ښوولی شوی دی ـ ځکه مؤرخ خواجو نهٔ خو د تعلی نه کار اخیستے دے نهٔ ئے مبالغه پکښې کړے ده او نهٔ پکښې د چا په خوشامنده او طرفدارئی مجبور وو ـ په دے توله ډرامه کښې د کتاب وړومبے مصنف خواجو مایزے یا دهغهٔ پلار او نیکهٔ د مساوی کردارونو په حیثیت موجود وو ـ ځکه نو اکثر بیانات یا خو د هغهٔ چشم دید دی او کوم چه څه تیرے ږوانی دی، نو چشم دید راویان ئے هم لا ژوندی وُو ـ

پیر معظم شاه چه ځان د کتاب دویم مصنف ګڼړی په یو ځائے کښې لیکی چه ـــــ

"مؤرخ محقق وقاصی این قصص خواجو می ګوید چه بارها هغه دوازه نښتر چه د بابر غشی پرے لګ وُو ما لیدلی وُو او په هغه وخت کښې چه دوئی له بیخه بربوتل نو زهٔ بیا په ډیره زلمے وم ـ پس له هغهٔ بنا برروش نور نښتر چه په هغه مقام ولاړ وو خلقو به هغه په غشو ویشتل ـ"

د کتاب تواریخ حافظ رحمت خانی ټول دور د وړومبی کتاب په رنګ په دوو پیرو مشتمل دے ـ د وړومبئی پیړئی مشری د ملک احمد بن ملک سلطان شاه بن ملک تاج الدین

بن ملک رخپړ منډنړ یوسفزی وه۔ او په دویمه پیړۍ کښې دغه مشری خان کجو بن قرا بن بهزاد صدوزی منډنړ یوسفزی ته حواله شوے وه۔

په تول کتاب کښې د یو سل یوویشتو (۱۲۱) وړو لویو افرادو ذکر اذکار موجود دی۔ خو د دے نه دا لګ دی انګیرل پکار چه د واقعاتو په دے بهیر کښے کښے نور څوک نۀ ُوو شریک۔ په حقیقت کښې دا د تول غوریاخیل د خروج او سردوباره آبادکارئ بیان دے۔ اود تاریخ په پاڼړو کښې د دے خبرے د ګواهئ د پاره پاتے دے۔ چه څوک چه د ژوند استعداد لری هغه د یو ډیر توانمند او قوی دشمن په مقابله کښې هم د مدافعت لارے کودرے پیدا کولے شی۔ د دیو غوره مثال د شیخ زنګی ابن ملاخیل رانړیزی خواجه خیل، چه د یوسفزو د ستانه دارو نه وو دا وینا ده چه :۔

"اے یوسفزیو! دروسئ زمونړ ملک سوات دے خدائے به ئے را کا۔،،

دا په دغه زمانه یوه ډیره غوره او په دفاعی، سیاسی او اقتصادی لحاظ اهمه فیصله وه۔ ځکه چه په سوات کښې یو خو دوئ د مغلو د سیاسی تصرف نه بهر کیدے شول۔*

* خان کجو هم د شیخ تپور د جنګ نه اګاهو دا ویره څرګنده کړے وه۔ "که دا ګزار تاسے د غوری (پاتے د صفحه ۱۳ په حاشیه)

دویم دا چه په دغه سیمه د دوئی مقابله د داسے طاقتور مخالف سره نهٔ وه چه کنبے دوئی ئے تابیا نهٔ شوه کولے ـ دریم دا چه سوات ښهٔ ښیرازه او آباد ملک وو غرپه سمه تبوله زمکه ئے د زرعی پیداوار او مال مویشی ساتلو د پاره موزونه وه ـ د یوسفزو د دغه وخت د حوائجو تفصیل صدر خوشحال په مثنوی ادم درخانئی کنبے داسے موزون کړے دے ـ وائی چه :ـ

یوسفزی په هغه دور د کو چی عالم په طور
په هر ځائے کنبے ئے میشته وه گاه به سیند گاه په میره وه
گاه به لاړهٔ د غرهٔ خوا ته گاه به بیا راغلهٔ دریا ته
چه ئے ښه د مال لیدله دوئی میشته هورته کوله*

او سوات په دے حقله د تبولو نه غوره او موزون وطن وو ـ د سوات په غرونو کنبے ډیر ښهٔ ښهٔ پناگاهونه هم وو ـ له دے امله د شیخ زنگی په مشوره عمل کولو ته تولے قبیلے ملا اوتړله ـ ځکه چه د ملک سلیمان شاه په خواست میرزا الغ بیگ دوئی باقی مانده د دوئی د مشرانو د

---

(پاتے حاشیه د صفحه ۱۲ نه)

ځهٔ او نهٔ کړل خود به اووینی چه غورے ستاسے سره څه چارے وکاندی ـ او څه رنگ مغرور شی چه په غرونو کنبے به مو هم بیا پرے نهٔ ږدی ـ

* مثنوی آدم دُرخانئی ـ صدر خان ختټک، قلمی، پښتو اکیډیمی لائبریری ـ

قتلِ عام نه پس مطلق‌العنان کړی وو او په قول د دے مؤرخ لکه چه والی الغ بیګ حکم کړے وو چه دوئی نور آزاد دی۔

"تا هر چه دانند بکنند و هر طرف که صلاح دانند بروند کسے مانع ایشان نه گردد" ۔ *

دا واقعه په اصل کښے د هغه افسوسناکے تاریخی واقعے نه پس پیښه شوے ده چه ښاغلی ظفر کاکاخیل ورته محض د افسانے نسبت کړے دے۔ د دے پوره تفصیل د خواجو مؤرخ په حواله په دے کتاب کښے موجود دے او اختتام ئے په دے الفاظو شوے دے۔

"الغرض چون همه آن هفت صد کس یوسفزی را مقتول ساختند میرزا الغ بیګ حکم نمود تا این همه مقتولان را بیرون شهر کابل برده دفن کنند۔ بنا بر حکم وے همه را برده مابین مشرق و شمال با مفاصلهٔ دوسه تیر پرتاب از کابل بر موضع سیاسنګ دفن ساختند و آن مقبره را تا هنوز خطیرهٔ شهیدان یوسفزی میګوئند و تا الیوم معلوم و عیان است۔ و قبر شیخ عثمان بن موتی مولیزی قدس سره، که سابقاً مذکور شده نیز در

---

* چه څنګه ئے فکر رسی او دے کړی او کوم پله چه ئے زړهٔ وی ځی دے څوک دے ئے لاره نهٔ نیسی۔

آنجا معروف مشهور است،، ۔ *

دهغه وخت په دے تاریخی روایت تش په دے وجه د افسانے گمان کول چه بابر غوندے صاف گو سلطان ئے په توزک بابری کښے ذکر نۀ دے کړے څه خاص وزن نۀ لری ۔ مورخین باید چه په داسے موقع په دے خبره فکر اوکړی چه د بابر د پلار میرزا غیاث او میرزا الغ بیگ تعلقات څه رنګ وو ۔ بابر په خپله په کومو حالاتو کښے د کابل په تخت قابض شوے وو ۔ په دغه زمانه د مغلو د پاره عموماً او د بابر د پاره خصوصاً د سیاسی مصلحتونو په خاطر دے واقعے ته اهمیت ورکول پکار وو او که نه ۔ په خپله د بابر غرض او فائده د یوسفزو په استیصال او بیخ کنی کښے وه او که نه د دے مضبوطے او لوئے

* لنډه دا چه څه وخت چه ئے هغه تول اووه سوه یوسفزی قتل کړل نو میرزا الغ بیگ حکم اوکړو چه دا واړه د ښهر نه بهر ویسئی او ښخ ئے کړئی ۔ هم د هغۀ په حکم ئے هغه مقتولین بوړل او د قطب او د نمرخاتۀ په مینځ ئے د کابل ښار نه بهر د غشی د گذار په درے هومره فاصله د سیاه سنګ نوبے کلی سره ښخ کړل او هغه مقبرے ته لا تر ننه د یوسفزی شهیدانو هدیره ویلے شی او تر ننه ښه معلومه او ښکاره ده ۔ او د شیخ عثمان بن موتی ملیزی قدس سره، چه وړاندے ئے ذکر شوے دے، مزار هم دغلته هرچاته معلوم دے ۔

قبیلے په رضا کولو کښې ـ بیا دا چه میرزا الغ بیگ په خپله خپل ځان په څه نه څه حیله د دے الزام نه مبرا کړے وو او که نه ـ

دا یوتاریخی حقیقت دے چه د مغل سیاست د ټولو نه غټه حربه هم دا وه، چه پښتون به ئے په پښتون واهٔ او غالباً چه په داسے واقعاتو کښے د یوسفزو د دے مپین ډیرو قتل عام د ټولو نه وړومبئی تاریخی واقعه معلومیږی، دا قسم واقعات د پښتنو او مغلو د کشمکش په تاریخ کښے ځائے په ځائے موجود دی ـ لکه چه خوشحال خان بابا وائی۔

بیا له پسه د ډیلی بادشاه بابر شو
چه ئے کار د پښتنو په برکت وو

دغه پښتانهٔ د چا خلاف جنګیدل ـ د پښتون بادشاه ابراهیم لودی، د مغل بادشاه بابر د پاره! نو مجبوراً به د وخت مصلحت بابر د یوسفزو په رضا کولو مجبور کړے وی، او هم دغه وجه وه چه په خپل سوانح کښے ئے د دغے واقعے ذکر نهٔ دے کړے ـ

د دے واقعے په وضاحت کښے داسے وائی چه ـ

در ان روز که میرزا قتل یوسفزی مے کرد رؤ سائے گګیانی نیز حاضر بودند فی الفور ایشان را طلبیده *

---

* په هغه ورځ چه میرزا یوسفزی مشران قتل کول د ګګیانړو رئیسان هم موجود وو ـ زرئے هغوئی را طلب کړل ـ

ورته ئے اوئیل چه دا دی اووۂ سوه(۷۰۰) غوره ښاغلی
مردان د یوسفزیو لاس تړلی دے و تاسے ته درکړل او
لاقے هم تاسے کړے وے چه اول به ئے مونږ هلاک
کړو . . . . . . . —

د موسیزو ګګیانړو مشرانو ته د بادشاه دا لمسه او د
هغے نه پس په قتل ګاه کښے د حسن ابن چنګا او د شبلی
ابن توری موسیزی ګګیانړی د ملک سلیمان شاه ابن ملک
تاج الدین رځړ مندنړ یوسفزی سره (چه هغه د مشهور یوسفزی
سردار ملک احمد ترۂ وو) هغه خبرے چه په غړونو او جوړو
کښے تر مونږ رارسیدلی دی د دے واقعاتو په ثقه‌والی
دلالت کوی-دا جوړے او غړونه په رجزیه انداز کښے ووـ
لکه د حسن ابن چنګا موسیزی سره منسوب دا غړ چه :—

لکه وایو هسے دینه*
لاس تړلی خدا ئے راکړی
اوس سو وژنو لکه بیرونه

او د دے په جواب کښے د ملک سلیمان شاه رځړ(چه
د ملک شاه منصور پلار او د ملک احمد ترۂ وو) دا وینا
چه :—

که جنګ وے به یرغونه
نه به رانغلے په سرونه

* دا غړونه په تواریخ حافظ رحمت خانی کښے موجود دی-

لکـه ئې لاس تـړلی درکړُو
اوس مـو وژنـه لـکـه سړونـه

ورسره ورسره د شیخ عثمان موتی ملیزی یوسفزی دا ارشاد :-

چـه دا دود میـړو لیدهٔ بـلـغـارکـه اروېـدهٔ
د خـدائې پـه کـرهٔ ئې وس نـهٔ رسیـدهٔ

مطلب دا چه اوښانو لا پخوا ژړل چه بورئی ئې کنډلې
او بیا د خوشحال‌خان ختک د ځوئی صدر خان دا اشعار چه :-

یـوسـفـزی چـه لا بـالا نـه بې وطن شول لـه "بـلا" نـه
حـادثـات په حادثـات شول لاړل میشت په سمه سوات‌شول*

اخر څه معنئ لری - دا کـومه "بلا" وه چه دوئی ئې
د بلا نه داسې په بده ورځ بې وطنه کړل - د نن مؤرخ د
څو سوه کاله پخوا دې سند ته تشه شاعری خو نهٔ شی وئیلې
او نـهٔ دا اشعار محض د شاعرئی پـه خیال ویلې شوی دی -
لا بیا هغه کشف چه د شیخ عثمان موتی ملیزی په دې ذکر
شوې وینا کښې ورته اشاره شوې ده - په دې کتاب کښې
بهٔ په تفصیل سره درج دې - په دغه زمانه په وسطی‌ایشیا
کښې چه موجوده افغانستان هم پکښې شامل وو - قیافه‌شناسی

* مثنوی آدم درخانئی صفحه ۵۳ (پښتو اکیډیمی چاپ)

یو مستند علم وو، او شیخ عثمان هم لکه چه زبردست قیافه
شناس عالم وو* او ځکه ئې د الغ بیگ په ستر گو کښې د
یوسفزو د بربادئی تیرے لیدلي وے ـ په دے لحاظ هم دے
تاریخی واقعے ته لکه د فتح خان رابعه گلے یا د موسیٰ خان
گل مکئی په رنګ د یوے افسانے نسبت کول د واقعاتو
بے ځایه تکذیب کول دی ـ

که چرے دا واقعه افسانه هم او گنړلے شی نو بیا
د مغلو او یوسفزو تر مینځه د دومره اوږدے دشمنئی او
محاربے مجادلے (چه د الغ بیگ د زمانے نه راواخله عن تر
عالمگیره پورے په یوه نخه قائمه وه) څه سبب کیدے شی
یقیناً چه دا د وینے عداوت وو ځکه ئې دومره طول اخستے وو ـ

د تاریخ په یو کتاب کښے به هم د دے خبرے
دلیل په لاس را نهٔ شی چه د دے نه پس چرے په یوه
موقع هم د ټول یوسفزی قام د مغلو سره مصالحت شوے
وی ـ اوس سوال دا دے چه هغه مسلسل حادثات چه صدر
خوشحال ورته اشاره کړے ده او هغه یلغارونه او مقاتلے
مجادلے چه په خپله پښتانهٔ هم پکښے د مغلو په پره د
یوسفنامے په خلاف ولاړ وو، د څه له کبله وے ـ د آئین
اکبری، مأثرالامراء، مأثر عالمگیری، تاریخ مرصع، تاریخ
خورشید جهان، تاریخ فرشته او هغه نورو ډیرو کتابونو
ابواب چه مغلو او پښتنو مؤرخینو لیکلی دی چه په دے
حقله بنهٔ ډیر شهادتونه لری او په خپله پښتون مشر خوشحال

* او گورئ د لارډ برنز کتاب Mission to Kabul

خان خټک هم دا ګواهي کوي چه ـــــ

زۀ د یوسفزیو په ځان زهر وم قاتل
بل مقصود مے نۀ وو په خدمت کښې د مغل
ډیر شاهان ځوانان مے یو د بله ووژلل
تیر ساعت ارمان دے پښیانی نشته حاصل

خو د وخت په تیریدو یوسفزو د خپلو عزیزانو ګناه ګیانړو تقصیر ځکه معاف کړو چه هغوئی هم بالاخر د مغلو په عتاب کښې راغلل او د کابل د مضافاتو نه په کوچ کولو مجبور کړے شول ـ په دغه وخت هم دغه یوسفزی ُوو چه دوئی ته ئے لاس ور اوږد کړو ـ دوئی ئے سیوا د موسیزو نه ټول خانه وار راوبلل ـ او په خپلو مفتوحه علاقو کښې ئے د ټولو نه غوره برخه یعنی دوابه هم دوئی ته ورکړه ـ په دوئی پسے موسیزی هم د بالا نه راکوز شول او یوسفزو ئے د وینے د تړون په خاطر قصور معاف کړو او نیم باجوړ ئے ورکړو ـ دوئی لا په دوابه تر ننه میشته دی، دا بعینیه دغه شان وه لکه د اورنګ زیب په زمانه کښې چه ئے د خوشحال خان خیلخانے ته د مغلو د عتاب نه د دوئی د بچ کولو په خاطر لاس وراوږد کړے وو ـ او د خپل ځان سره ئے اباد کړی ُوو ـ تر دے چه خوشحال خان ورته په خپله اووۀ پړکه وصیت نامه کښې چه ۲۰ رمضان ۱۰۷۶ ھ کښې ئے په قید خانه کښې کښلے وه او د عمر اسماعیل خیل په لاس ئے استولے وه ـ په دے وصیت نامه کښې ئے ورته "بابازی" وئیلی دی ـ وائی:ـــ

"بابازی — بائیزی دی ـ بلکه د ما د مور پلار
خونه هسے دی ـ چه دِ فرزندان پکښې ورغلل* د
اورنګ زیب بدی ئے راسره واخسته حق ئے د
دوستئ د خویشئ هر چه د یارئ اشنایئ دے
په ځائے کړو ـ

رحمت زی — رانړیزی دی ـ چه په دا ننګ شرم
شریک شول ـ د دواړو اولسونو ځو توان رسیږی
نیکی بویه ـ د پښتن والئ په کار د مغل په دربار
د دوئ په بهبود ستې کوشش بویه ـ سر و مال
و ستې که د دوئ په کار په رخنه کښیږی که
په کار کیږی دریغ نۀ بویه ـ دوستی حویشی دے
هم له دوئ سره وی بلکه دواړو اکوزیو سره
دے دا حال محکم مستحکم وی —" **

یوسفزی په دے هوډ دومره مستحکم او کلک وُو
چه په پیړو پیړو ئے د مغل لارے څارلے ـ حصارونه او
قلاګانے ئے ورله ویجاړولے ـ د هنډ نه پورته د اباسین په
قبله د یوسفزو او په نمر خاتۀ د مغلو تصرف وو ـ د سیند
دواړه غاړے یو مستقل جنګ ګاه وو ـ څه وخت چه مغلو
د اورنګ زیب عالمګیر په ورځو کښې د لښکر کوټ د قلا

* کلیات خوشحال خان خټک صفحه ۹۴۲

** تاریخ مرصع قلمی صفحه ۲۰۷ ـ نقل پښتو اکیډیمی ـ

جوړولو نیت اوکړو ۔ نو خوشحال‌خان مهابت خان ته لیکلی وو چه۔

چند کهگل مے نمائی بے بقا دیوار را*
گر تو لنگرکوټ خواهی قلعه کن دمغار را

او د یوسفزو د مهماتو په حقله ئے دا مشوره هم ورکړے وه چه ـــــ

مهم د یوسفزیو درته وایمه ښکاره
د خرهٔ خسی کول دی لاس گنده گریوان پاره*

سره د دے چه په دغه زمانه لکه چه د پښتونخوا دغه افغان شناس شاعر وائی چه ـــــ

خزانے د هندوستان دی را خورے شوے**
سرهٔ مهران دی نتوزی په کوهسار

خو دغه مهرانو هم د یوسفزو د سیمے په کوهسار کښے لار او نهٔ ویستے شوه ۔ د دے په ثبوت کښے د افضل خان خټک دا بیان بس دے چه*** ـــــ

عالمگیر محمد امین خان د لاهور صوبیدار، له ډیره لښکره سره د یوسفزو په مهم تعین کړهٔ، چه راغے یوسفزی عالم په سمه کښے میشت وو له سمه ئے پاسول وغرونو ته

---

* تاریخ مرصع و حیات خوشحال خان خټک (کامل)
** کلیات خوشحال خان خټک صفحه ۲۵۷ (کامل)
*** تاریخ مرصع صفحه ۱۸۷ (پښتو اکیډیمی)

شو، سړی ئے تر میانه کړۀ چه د شجاع هلوونه په لک روپئ راکړئ - یوسفزو ځواب اوکړ چه توم مو به په بد شی ور ئے نۀ کړ - نور وجاروت لاړ -

د دے سبب صرف دا وو چه د یوسفزو او مغلو بدی د پښتو کانړے وو - او دا معلومه خبره ده چه د پښتو کانړے به اوبو کښے نۀ ورستیږی - ځکه خو دوه نیم سوه کاله یعنی په هند کښے د مغلیه سلطنت تر زواله دا بدی جاری وه -

ویش | د ګګیانړو په دوابه په میشته کولو کښے چه کوم خاص سیاسی مصلحت پټ وو، هغه دا وو چه یوسفزی د خپل مدافعت او د مغلو د دسترس نه د ځان لرے باسلو په خاطر په دے خبره مجبور وو چه د دوابے غوندے ښیرازه او اباده علاقه یوے داسے تپے ته پریږدی چه هم ئے پښتی وی او هم د دوئی او د مغلو تر مینځه د سپر یا ډال په مثال وی* - د دے د پاره دوئی ته د خپلو عزیزانو ګګیانړو نه زیات موزون بل څوک نۀ ښکاریدل -

د علاقے محل و قوع مونږ ته دا ښائی چه که څه هم ظاهراً ئے محمدزی او ګګیانړی دواړه تپے د غوری په زمکه واچولے او د کاټلنګ د جرګے په موقع ئے لکه چه د موسیزو تقصیر هم معاف کړو او د دوابے سره ئے نیم

* داسے علاقے ته بفرزون Buffer Zone وئیلے شی .

باجوړ، له دانشکوله تر عنبره تر لاشوړے تر ناوګئی تر چارمنګه چه اول د خلیلو برخه وه، دا ئے موسیزو ګګیانړو له ورکړه نو ښکاره ده چه په دے جوړ ملک احمد بابا د خپل تدبر او سیاسی او جنګی بصیرت په رنړا کښے د خپل اولس نه هم د خپلو عزیزانو یو مضبوط حصار چاپیره کړ۔

د دے خبرے تصدیق په خپله د ملک احمد د هغے وینا نه کیږی چه په دے موقعه ئے محمدزو ته کړے وه، چه ــــــ

وردروشئ اشنغر مے درکړے دے ۔ په تاسو د مبارک وی ۔ بارے په تاسو هم لازم دی چه ځان د ښځی ځلورم ځوے اوګنړئ او په هره ښه بده د ښځی حاضریږئ ۔

خو د دے برعکس ګګیانړی چه د ښځی د دریم ځوی اولاد وو هغوئ ته ئے داسے هیڅ خبره او نه کړه۔ فقط دا چه د ناویسایئ د خاطره ئے هم هغوئ غوریا خیلو او مغلو ته سیلمه کړل ـــ

محمدزی او ګګیانړی دواړه په دے تقسیم دومره خوشحاله شول چه ملک احمد ته ئے اوویل چه ــــــ

خانه! دا ملکونه واړه تا په خپله ګټلی وو۔ زمونږ هیڅ استحقاق پکښے ثابت نهٔ وو۔ بارے چه تا په خپله کرم بخشی مهربانی وکړله مونږ د واړه غلامان شو ـــ

د شیخ ملی دفتر | د زمکو د تقسیم دا زمانه خواؤشا
۹۳۰ هجری، مطابق ۱۵۲۳ عیسوی کال معلومیږی۔ هم په
دے کاؤنسو کښے شیخ ملی بابا خپل مشهور دفتر مرتب
کړے دے۔ لوء تقسیم د کاټلنګ د تاریخی جنګ نه سمدستی
پس چه لا لښکر نهٔ وو خور شوے، اوکړے شو ۔ پس له
هغے د یوسفزامے کورا کور تقسیم اوشو ۔ دغه په اصل کښے
په دفتر شیخ ملی یادیږی ۔ دا تقسیم د هغه مابقیه ملکونو
او علاقو وو ۔ چه ملک احمد د یوسف مندنړ په نامه پاء
کړے وے ۔ او څکه ورته د یوسفزو د کورنئی تقسیم
وئیل مناسب دی ۔

دا علاقه وار تقسیم په نیم باجوړ ۔ سوات ۔ بنیر ۔ تینول،
تولهٔ سمه تر نوښاره او د اباسین تر غاړے په دے زمکو
مشتمل وو ۔ په دے کښے دوئی اتمان خیل، ګدون، کشار،
روانړی، کانسی، ګوجر او نور مخلوط اقوام د ځان سره په طور
د مرستیالو اوساتل ۔ څنګ ئے همسایه او فقیران شول ۔ خو د
تقسیم په حقله ئے هر څوک خوشحاله کړل ۔

وائی چه شیخ ملی نهایت متدین، متقی، قائم‌اللیل او
صائم‌الدهر سړے وو ۔ هر چرته چه به تهٔ، خدمتګار به کوزه
د اوداسهٔ ورسره ګرځوله ۔ او دے ماتحت د ملک احمد،
مقتدا د درست یوسف مندنړ وو ۔ دے د هرے چارے او د هر
مهم غمخور وو ۔ همګی ملکونه تپه په تپه کور په کور
د دهٔ په دفتر ختلی وو، او دهٔ ویشلی وو ۔ او تر اوسه

پورے هم د دۀ هغه تقسیم په یوسف مندنړ خصوصاً په سوات کښې جاري دے ـ

پیر معظم شاه وائی چه د یوسفزو چه چرے هم په زمکه سره مباحثه شي، سره اووائی چه "دا تا له شیخ ملی راوړی دی چه دعویٰ ئے کوے!" غرض دا چه د دۀ ور کړی تر اوسه منظور دی ـ د پیر معظم شاه دا بیان د ۱۰۳۳ھ مطابق ۱۶۲۴ء یعنی د خواجو مؤرخ د بیان پرتو ده ـ خو هم دغه حقائق لا تړ نته چه ۱۳۹۰ھ مطابق ۱۹۷۰ء دے، جاري دی ـ او د یوسفزو کومے تپے او کوم خیلونه چه په کومو زمکو د پوخ تقسیم نه پس پریوتے، هم په هغے پاتے شوے ـ ځکه چه دا تقسیم تر ډیرے زمانے د تپه وار بدلون په حساب وو او کلی اولسونه به پکښې څو کاله پس د یوے علاقے نه بلے ته کوچیدل* ـ دے ته به ئے "وار" وئیلو ـ

دا واره کړے تقسیم تر ډیرے زمانے جاري وو ـ آخر یوسف مندنړ خپل ملک دوه برخے کړو او نیمه سمه د سوات او بنیر سره د یوسفزو شوه ـ او نوره علاقه د اباسین تر غاړے تر پیهوره تر توربیلے د مندنړو په تصرف کښې پاتے شوه ـ په برو یوسفزو کښې د رانړیزو، اکوزو او خواځوزو واره کړے تقسیم هم تر ډیرے موده جاري وو ـ خو په آخر کښې دغه تقسیم د کلو کلو پورے محدود شو ـ

---

* کاسټس اینډ ټرائبز آف دی پنجاب اینډ فرانټیر ـ یوسفزئی

د زمکو بدلون به په ځینو علاقو کښې څلور کالې چرته، اته کالې او چرته به دا بدلون لس کاله پس کیدو ـ

د زمکے د برخے بندلے حساب کوروسر وو ـ او هر چا ته به د خپل پلرین حق په تابین حصه ورکیدهٔ ـ د زمکو تقسیم چرته په روپئی، چرته په قلبه، او څنے ځائے په بچه وو ـ هم په دغه حساب به غر په سمه او په اوچه للمه د دوتری برخه وه ـ دا تقسیم دومره صحیح او بے چوکسه او مساویانه وو چه تر شلمے صدئی عیسوی پورے پکښے هیڅ غلطی نهٔ ده پیدا شوے ـ او پیړئی په پیړئی هر چا ته د خپل نیکنی دوتر حصه ورکړے شوے ده ـ د دوتر د تقسیم دے طریقے ته به ئے "ویش" وئیلو ـ

پیر معظم شاه د اخون درویزه په حواله وائی چه ـ

شیخ ملی در مرض موت خود گفتهٔ بود که من در عمر خود انصرام مرام اهل حوائج گاهے به طمع دنیاوی نه کرده ام ـ بلکه خالصتاً لله کرده ام ـ پس اگر درین سخن راست گو باشم تقسیمات ملکها و تعینات حدودها که فی مابین یوسفزی کرده ام تا روز قیامت باقی باد و اگر دروغگو باشم از میان ایشان مرتفع باد ـ انتهیٰ کلامه لهذا تا هذالیوم تقسیم وے ثابت و برقرار است و اولاد وے درین وقت بعضے در یوسفزی و بعضے در هندوستان است*ـ

* شیخ ملی چه څه وخت د مرګی په رنځ پریوت نو (پاتے حاشیه په صفحه ۲۸)

سزاګانے: | د ویش د قواعدو نه علاوه شیخ ملی :
خپل قوم د پاره یوه ضابطهٔ اخلاق هم وضع کړے او رائجه کړے وه - دا ضابطهٔ اخلاق لکه شرعی قانون وو چه په عزه تپـه او هر کلی کښے ځنے عـالمان مشائخ او ستانه دار د دے د اجراء د پاره مقرر وو - سزاګانے به شرعی وے خو د ځینو طریقه به د علاقے د خلقو د مزاج مطابق وه - هم دغه وجه وه چه په دے زمانه کښے د دے سیمے د خلقو اخلاق معیـار او انفرادی کردار ډیر اوچت وو - لکه چه میان معظم وائی چه ــــــ

یوسفزی هاله ډیر خوش خویه نیک معاش خلق وو -
د دے قوانینو مطابق به ئے بیلمازانو، جوارګرو، نشه‌ئیزو
زناکارو او نور فواحش کونکو ته سزاګانے ورکیدے -

---

(پاتے حاشیه له صفحه ۲۷)

وئیلی ئے وو چه ''ما په خپل ژوند کښے د حاجتمندو د مرام بندوبست چرے په دنیاوی طمع نهٔ دے کړے بلکه خالصتاً د خدائے د پاره مے کړے دے - پس که زهٔ چرے په دے خبره کښے رېښتونے یم نو کوم ملکونه چه ما تقسیم کړی دی او کوم حدود چه ما د یوسفزو تر مینځه مقرر کړی دی هغه د تر قیامته باقی وی - که په دے کښے دروغ وایم نو تر مینځه دے ئے پورته شی -'' لنهٔ دا چه هغه تقسیم لا تر ننه ثابت او برقرار دے - او د هغهٔ اولاد په دے وخت کښے ځنے په یوسفزو او بعضے په هندوستان کښے دی -

په تولة قبيله کښې په دے قسم عاداتو سخت بندیز وو دے ضابطے ته به ئې "شیخ ملی" وے - د دے په ذریعه به په کال کښې يو ځل په زیرکه میاشت کښې د تول اولس اخلاق تطهیر کیدو - د محاسبے په وخت چه به کوم کسان په کوم جرم ماخوذ کړے شول هغوئی ته به د خپل جرم په تابین سزا ګانے ورکیدے - په دے کښې ځینے سزاګانے د خاص نوعیت وے - لکه:-

(۱) په خر ډانګ کول:- مجرم به په يو اوږد ډانګ په خرانګنی کړے شو - دوؤ تکړه سړو به ډانګ د يو سر او بل سر نه نیولے وو - هم دغه شان به ئې د کلی په بازارونو او کوڅو ګرځوو - ماشومان او شیخان طالبان به ورپسے وو - کلمے به ئې ورپسے وئیلے - ځائے په ځائے به ئے اودروؤ او خلقو ته به ئې د هغهٔ د انجام نه د عبرت حاصلولو سبق ورکوؤ -

(۲) په خرهٔ سورول:- مجرم به په شاتوری خرهٔ سور کړے شو - یو سړی به د خرهٔ غاړے ته پړے اچولے وو - د جلوس په وړاندے به روان وو - د خلقو جلوس به ورپسے وو - سرنی نغارے به ورپسے وهلے کیدل شیخانو به پسے کلمے وئیلے - عالمانو به په چوکونو ایسارو او خلقو ته به ئې د بدو چارو نه د ځان ساتلو تلقین کوؤ -

(۳) مخ تورول:- ځینے وخت به د مجرم سزا چه سنګینه وه نو مخ به ئې ورله د جاعت د ډیوے په تورکی

تور کړو ـ کله کله به ئے ورله د پرتوګ نه پټکے اوواهۀ، په پټکی کښے به ئے ورته د مردار چرګ یا کارغۀ تپس بنړے نالے کړے ـ د هـډوکو یا زړو چیتړو امیل به ئے ورته په غاړه کړو او په خرۀ به ئے سور کړو ـ ډُمرنی نغارے به ورپسے وے ـ چه جلوس به روان وو د خرشنو، غوشیانو ټپولی به پرے وروله کیدل ـ دا به د ډیرو سزاګانو مجموعه وه چه کمے زیاتے به پکښے کیدے شو ـ

(۴) سر خریل :ـــ د بدکاره ښځے سزا به عموماً سر خریل ُوو ـ

(۵) په ُدرو وهل :ـــ ځنے سزاګانے به خالصے شرعی او کتابي وے ـ لکه په ُدرو وهل ـ په دے کښے به د اسلامی فقهے د قوانینو پابندی کولے شوه ـ د سزا حد به هم د هغے په اندازه وو ـ دا سزا به عموماً بدکاره سړی او بدکارے ښځے ته ورکیده ـ

(۶) سنګسارول :ـــ ځنے مجرمان به سنګسارولے کیدل خو داسے موقعے بـه ډیرے کمے پیښیدے ـ کله چه به څوک سنګسار کړے شو نو عام اولس چه به کله هم د هغۀ د ځلی په خوا تیریدو هر سړی به پرے درے کاڼړی ویشتل ـ د سوات بنیر او سمے په ځینو کلو کښے لا تر ننه داسے ځلی موجود دی ـ او اوس هم چه څوک ئے په خوا تیریږی نو هم به هغه دود پرے کاڼړی وروی ـ په دے ځلو کښے د اندیلزو خدرے ځلے په خصوصیت سره

مشهور دے ۔

د شیخ ملی دا سزا ګانے د پښتنو د هغه عامو رواجی سزا ګانو ،جرمانو او ناغو توغو نه بیخی مختلفے وے، کومے چه به پښتنو مشرانو، خانانو یا د هغوئی جرګے د حجرے کلی او قام د رواج مطابق ورکولے ۔

د شیخ ملی تیکسونه : د شیخ ملی په مقرر کړو تیکسونو کښے د جماعت د بوقے، کیډی او د خدمتګار د پاره کور و سر څه رقم یا غله مقرره وه ۔ د دے نه علاوه د قربانئی څرمن به هم جماعت ته وقف وه ۔ د امامانو د پاره د تل په سر سیرئی وے ۔ دا به د ستانه دارو او مشائخو د سیرو نه علاوه وے* ۔ د جماعت په ودانئی، سرست او لیو اخاړه کښے به ټول تلګری شاملیدل ۔ کور و سر سړے به لازماً حاضریدو، که څوک به په داسے موقع حاضر نهٔ شو نو ناغه به ئے ورکوله ۔ د جماعت بش، غوړ ګے، چانړه بو ګر، به یا خو د قومی ځنګل نه راوړے کیدل کنی کمهٔ نهٔ سلے نو په ټولانه به اخستے شول ۔ د دے مقرره اصولو پابندی لا تر ننه جاری ده ۔ دا ټولټه به خالصتاً د دوتر په سر وه ۔ بے دوتره خلق به د دے تیکس نه معاف وو ۔ څکه

* د مشائخو او ستانه دارو سیرئی به عموماً د کلو او تپو په برید وے او د دوئی پوخ ملکیت به ګنړلے کیدو ۔ د دے نه علاوه به ځنے د مشرئی سیرئی وے چه حجرے به پرے چلیدے ۔

چه عغوئی ته به د لاس او پښو خدمت حواله وو ـ

جماعتونو به د مکتب کار هم ورکوو ـ د طالبانو د پاره به وظيفې مقررې وې، دا وظيفې به د دوه وخته ډوډۍ غلې نه علاوه د فصل په تيارېدو د درمندونو نه د ټولانې په شکل کښې وې ـ دغه رنګ راټوله شوې غله به طالبانو خرڅوله او د هغې نه په حاصل شوی رقم به ئې د جامې پيزار کار کيدو ـ په زيرګه مياشت کښې او په اختر شوقدر به صدقې خيراتونه هم دوئ ته ورکيدل ـ او دغه رنګ به د دوئ د دارو درملو او کتابونو او تيل صابون حاجت تر سره کيدو ـ په ټوله يوسفنامه کښې د شيخ ملي د نظام د برکته تعليم مفت او عام وو ـ په دې کښې د وخت او عمر هيڅ پابندی نه وه ـ په مکتب کښې به ماشومان هلکان او جينکئ ګله کښيناستل ـ خو هر کله چه به جينئ پيغلتوب ته نزدې شوه، نو زنانه استاذانو ته به حواله کړې شوه ـ دا سې استاذانو ته به د جامې پيزار نه علاوه په فصل مقرره غله دانه ورکيده او په هره غم ښادئ کښې به ئې پوره پوره اعزازی برخه وه ـ

مختصراً دا چه په تواريخ حافظ رحمت خانی کښې د قامولئی، پرې جنبې، پښتنی کردار، د پښتنو د عاقبت نااندیشئ، د آزاد او غلام د فرق، د مغلو د سياسی حکمت عملئ، د پښتنو او مغلو د ځوانو مراسمو او تعلقاتو، د قومی او انفرادی بدعتونو، د قومی تعصب او خيرخواهئ د جذبې، د دينی پيشوايانو او متانه دارو د قدر او عزت، د مغلو د

سنګدلئ، د پښتنو د غیرت او حمیت د مظاهرو، د سردارئ او مشرئ ورکولو د رواج، د جرګے د احترام، د ننواتے د اهمیت، د پښتنو میرمنو د کردار، د جنګ د طریقو او آدابو، د ځینو قلاګانو او حصارونو د اهمیت، د مطربانو او قوالانو د حیثیت او په پښتنو خصوصاً په یوسفزو کښے د نسب نامو د رواج تول انکار په دے کتاب کښے موجود دی ۔

پیر معظم شاه د کتاب په اختتام کښے دا اشعار لیکلی دی ۔

شکر شکر چه مکتوب شهٔ دا کتاب په ښهٔ اسلوب شهٔ
دا کتاب، اول طویل وو در په دهٔ کښے قال و قیل وو

نور په حکم ما د خان
چه حافظ دے د قرآن

چه په هند کښے لکه نمر دے تمام هند پرے منور دے
شیماست پور د دهٔ وطن دے پیلی بهیت ئے اوس مسکن دے

هجری سن زر سل اتیا دے
یو کال بل هم پرے بالا دے

غره هم د محرم ده
دا رنګ یاد د معظم ده

پاک مولیٰ د خان معین شه
د هر چا په دا امین شه

د کتاب نقل په ۲۶ جولائی ۱۸۶۴ء کښې میرزا محمد اسماعیل قندهاری د میجر راورټي د پاره تیار کړے دے - دغه نسخه اوس په برټش میوزیم لائبریرئ لندن کښے محفوظه ده - د کتاب په سر کښې د میجر راورټي د لاس د تاریخی اهمیت یو مختصر شان نوټ هم لیک دے - دغه نوټ د لوستونکو د دلچسپئ د پاره د دے چاپ کتاب سره هم شامل کړے شوے دے -

شلور علمی کورنئ:- په پښتنو کښے په شلورو غټو علمي کورنو کښے درے خو په پښتونخوا کښے میزے او مشهورے دی - چه یکښے وړومبئ د اخون درویزه صاحب کورنئ، دویمه د خوشحال خان خټک شیلخانه او دریمه د د ځمکنو د میاں صاحب کورنئ ده - شلورم خاندان په هند کښے د روهیله ؤ د نامتو مشر شهید حافظ رحمت خان دے - چه د کتاب تواریخ حافظ رحمت خانی نه علاوه د پښتو د لغاتو او د پښتنو د تواریخو او نسب نامو په حقله ډیر کتابونه په دے خاندان پورے منسوب دی - دے خاندانونو، علومو فنونو له، خصوصاً په پښتو کښے فروغ هم ورکړے دے او د عالمانو شعراؤ قدردانی ئے هم کړے ده - باید چه په وخت او موقع د دے شلورو واړو خاندانونو د علمی خدماتو په حقله مفصل تحقیقات او کړے شی او د پښتو ژبے او ادب په تاریخ کښے دوئ ته خپل مناسب حق او مقام ورکړے شی -

اختتامیه بیا د تواریخ حافظ رحمت خانی د چاپ کولو غرض دا دے چه د دے واقعاتو نه عبرت او سبق واخستے شی او د قبائیلی گوندونو او برو جنبو د انگتو او نبتو په ځائے ټول پښتانه په یو اسلامی وحدت کښې سره اوپیرلے شی، او د شریکے ورورولئی او مساواتو هغه اسلامی جوهر بیا را ژوندے کړے شی، چه پښتون اولس ئے ډیره زمانه د دنیا په قومونو کښې افضل او سرفرازه کړے وو ـ

محمد نواز طائر
ایم اے (جغرافیه) - ایم اے (فارسی)
ایم اے - آنرز (پښتو)
پښتو اکیډیمی، پېښور یونیورسټی

۲۳ فروری ۱۹۷۰ء

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

سپاس و ستائش مالک‌الملک که کنگرهٔ قصر کبریائی جلالش رفیع تر ازان است که کمند اوهام خواص و عوام به دان جا تواند رسید، و فضای بیدای کمالش وسیع تر از آنست که مرغان اولی اَجْنِحَهٔ نفوس فلکی و عقول ملکی بدانجا رخت تواند کشید ـ

به کدام زبان بیان توان داد که آلودهٔ لوث امکان را از مقدس مطلق چه آگاهی، و محبوس زاویهٔ عدم را از ذات بحت چه همراهی، جائیکه والئی ملک نبوت و صاحب ولایت فصاحت که 'اَنَا اَفْصَحُ'، مقوله شریفهٔ اوست، به عجز خود اعتراف نموده و زبان به کلمهٔ لآ اُحصِی کشوده، دیگرے را چه یارائی گفتگو، و غیرے را چه مجال تگ و پو :

دل ز کجا این پر و بال از کجا     من که، و تعظیم جلال از کجا

او آنست که خود گفته، و گوهر ثنائے او چنانست، که خود سفته که قوله تعالیٰ:ـ سُبْحَانَ الَّذِي بِيَدِهِ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيْءٍ وَ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ـ و درود سعادت ورود بر گزیدهٔ معبود که وَ مَا اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ خطاب اوست، و ممالک ملک کونین اقطاع منصب بندگان احباب اوست ـ بکدام استعداد مرقوم توان داشت، جائے که واجب‌الوجود لولاک ثنائے او گفته، و دین او را ناسخ ملل و ادیان اولین ساخته ـ و به اهل بیت اطهار و

اصحاب اخیار موید گردانیده، دیگرے شکستہ زبانے را چه تاب زبان کشائی وغیرے آشفته رائے را چه مجال سخن آرائی :

ورا عِزّ لولاک تمکین بس است ثنائے او طٰهٰ و یٰسین بس است

زہے محبوب درگاہ صمدیت و مقبول بارگاہ احدیت که قبائے لِی مَعَ اللہ بر قامت او راست و دعوائے اَنَا سَیِّدُ وُلْدِ آدَمَ او را بر جاست -

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَ عَلٰی آلِهِ الْاَطْهَارِ وَ صَحْبِهِ الْاَخْیَارِ اِلٰی یَوْمِ الْقَرَارِ

اما بعد نگارندۂ این کتاب، و سازندۂ ابواب، بندۂ کمینه یه معظم شاه ولد پیر محمد فاضل مغفور مبرور متوطن موضع پیر سهباک تعلقهٔ شهر پشاور چنین می گوید، که عمدة الامراء العظام اسوة الکبراء الفخام خان عالیشان حافظ الملک والقرآن خان رحمت خان سلمه الرحمٰن عن نوائب الزمان -

## نظم

آنکه از رائش عروس ملک را رونق و حسن و جمال و زیور است
ظاهرش بر جادۂ شرعِ رسول باطنش هر دم به یاد داور است
هرچه درمدحش نویسد کلک فهم ذات عالیِ را سزا و در خور است

به اشتغال کتب متنوعه و نُسخ هر قسم الفتے تام و رغبتے تمام میدارد - اتفاقاً روزے کتابے تواریخ افاغنه مسوده طریق مشعر بر احوال اقوام خښی و غوری غالباً بر احوال یوسف زی به زبان افغانی فارسی آمیز مطابق اخبار تذکرۂ عارفِ بے بدل،

سالک شاهراه علم و عمل آخوند درویزه علیه الرحمة از کتب خانهٔ عالیه خاصه شریفه سرکار فیض آثار نواب معلی القاب خان بهادر خان قوم افغان عرف غوریه خیل خصوصاً داؤدزے خط انداز و رونق افزائے بلدۂ شاه جهان پور طاب الله ثراه و جعل الجنة مثواه به هم رسیده به نظر کیمیا اثر وے در آمد - (ادام الله اقباله وضاعف اجلاله و جعل الی کل خیر مآله -

پس چونکه جناب فیض مآب خانصاحب محقق زمانه و مدقق یگانه است، مضامین واقعات غریبه و حکایات عجیبه به موجب تصدیق و تطبیق تذکرۂ مذکور، که مشت نمونه خروار است پسند خاطر افتاده - اما از انجا که عروس عبارتش مسوده طریق بے نظیر ثانی مصنف با حشو بیهوده و تکرار بلا فائده مانده بود به زیور قبول متحلّی نه شده، لا جرم بدین غبی ذرہ نظیر بے بضاعت قلیل الاستطاعت که یکی از کمترین دعا گویان و کهترین ملازمان حضور پر نور بود، فرمودند که اگر کتاب مذکور بے فوت مقصود به قسمے که سریع الفهم باشد مختص گردد بسے مستحسن خواهد بود که از مطالعه آن کسے را ملالتے نه رسد و به کدورتے نه انجامد -

بناءً علی هذا مطابق امر والا به عبارت قلیل اللفظ کثیرالمعنی اختصار آن شده مهذّب و مبوب گردید مقامات سبعه مرتب گشت و به تاریخ حافظ رحمت خانی موسوم شد - و به نستعین وَاللّٰه الْمُسْتَعَانُ عَلٰی مَا تَصِفُوْن -

## مبدای کتاب مصنف اول

بیت

ځار تر خدایه شم په دا هسې قدرتونه
چه آدم حوا لا نهٔ وو تا هالهٔ کښل قلمونه
قدرتونه د ښکاره کړهٔ
تا پیدا کړهٔ اووهٔ زمکې آسمانونه
د شې زمکې قرار نهٔ کېږ
تا پرې کېښول درانهٔ درانهٔ لوی غرونه
تر دې غرونو ډیر درانهٔ دی
معتبر د دین مړونه
د مړونو ځائې د جوړ کړ
د ګور غار، ننګه خونه
هغه ځائې لره به ورشو
چه نهٔ لار لری نهٔ ورونه
یوه ورځ به پکښې بند شو
ترقیامت به پکښې یونه
لر غونی مړی پوښتی
چه د یوسف زو وو کوم ملکونه
ملک ئې نشکې، مینه نئې ګاړکې
غوریه خیل کا ترا اوسه پیغورونه
غوریه خیله! پیغور مهٔ کړه!
تهٔ، خښې ئې سره وروڼره
خښې متا له لاسه راغې
هالهٔ تهٔ زورور وې په مړونه

# مقام اول

در ذکر اوطان اصلی اقوام خښی و غوری خصوصاً قوم یوسف زی وغیرهم من توابع ایشان و سبب ارتحال ایشان از آنجا و آمدن به مضافات دارالسلطنت کابل و مخالفت میرزا الغ بیگ شاهزاده با قوم یوسفزی و کشته شدن سرداران یوسف زی از دست او، و آمدن ایشان از آنجا به مضافات شهر پشاور وغیره که بالفعل در آن متوطن اند ـ

می گویند چه یوسف زی په گاره په ښکی، او غوریه خیل خصوصاً خابل په ترنک ـ په مقر او قره باغ پراته وُو، په یوهٔ سبب ئے جنگ سره وشهٔ ـ خښیے ئے درست مات کړ، معه ملک ئے ترے راؤنیوهٔ ـ درمت خښیے چنانچه یوسف زے، او گگیانے، او ترکلانے، ورسره لا محمد زے هم در و بست له قبائیلو سره راؤ کوچیدل، مخ په کښته کابل ته راغلل ساکن شوُ ـ الغرض مردم یوسفزی در نواحی کابل خیلے با حشمت و شوکت شده، تمامی حدود مضافاتِ کابل را در تحت تصرفِ خود آوردند ـ

گویند که در آن ایام میرزا الغ بیگ شاهزاده بن سلطان ابوسعید بهادر تیموری در نهایت صغر سن و خورد سالی با قدرے قلیل مردم مغول در آن عنقریب از ماوراءالنهر به کابل آمده، شکسته حال و خسته روزگار بودند، و در آن وقت سردار تمام اقوام خښی ملک سلیمان شاه بن ملک تاج الدین بن ملک رخی بود، وقتے که سلیمان شاه ملازمت میرزائے مذکور حاصل نمود بسیار محبت درمیان ایشان پیدا شده، به حدیکه ملک مذکور دختر

خود را به میرزائے مذکور منسوب نموده همیشه ویرا به زانو ئے خود نشانده فرزند وار می پرورید، و تربیت میکرد، تا به آن حد چه یوسف زی کل د دۀ لښکر شۀ - او سلیمان شاه دے په دا غرض لویاوۀ، چه کوندے شاهزاده دے، چه لوئے شي بادشاه به ئے کړم - واړه حکم به ئے څما شی، کل خښیے خصوصاً یوسف زے به پرے هر کوره ډیر دروند او صاحب جاه شی -

اتفاقاً یوه ورځ میرزا الغ بیگ د سلیمان شاه په غیږ کښې ناست وو، قدوة المکاشفین شیخ عثمان بن موتی مولیزے که یکے از اولیائے صاحب کشف و اعیان آن زمان بود، و مردم یوسف زی بالکل گرویده ی معتقد او بودند، پرے ورشے او میرزائے مذکور د سلیمان شاه په غیږ کښې ناست وو - شیخ عثمان مذکور تشریف [illegible] په دغه حالت کښې ولید، ورته یئے اوویل چه "ملکه! دا څه کړے؟" سلیمان شاه ورته اوویل چه "دا شاهزاده دے - لوئے، وم ئے چه که بادشاه شی سلطنت به ئے څما شی او قام به مے پرے عزیز او دروند شی" شیخ ورته او فرمائیل چه "د دے زلمی سترگے لکه د یزید هسے دی چه صحابه(رض) ئے قتل کړی او هلاک کړی وُو - دغه هسے به ستا قوم هم هلاک کا -"

ملک مذکور ورته اوویل چه "شیخ جیو! دارنگه مه وایه، له تا نه دا هسے نۀ ښائیږی - چرے نه چه نور څوک پرے خبر شی - ولے چه بادشاهان د چا احسان نۀ وره کوی - دے بادشاه زاده دے، چه لوئے شی بادشاه به شی چار به ئے څما شی، قام به مے پرے محترم شی" -

شیخ ورته اوفرمائیل چه "نه ملکه! خبر مے کړے بیا به د

وئیل چه وئیلی دِ راته نهٔ وو، نور اختیار دِ خپل ـ"

چه ملک سلیمان شاهزاده مذکور په طریق مسطوره سره لوے کړ، تربیت کماحقه ئے اوکړ، تر کماله ئے ورساوهٔ ـ نور ئے بادشاه کړ ـ خطبه او سکه په نامه د دهٔ وچلیده ـ مستقل بادشاه شهٔ، ملکونه ئے ضبط کړهٔ ـ عساکر ئے ډیر شو ـ مغول هم له اطرافو جوانبو راغلل پرے جمع شول، تخت گاه ئے کابل شهٔ ـ اما هنوز کاروبار او مصلحت کل متعلق په ملک سلیمان شاه وو ـ یوسفزی پرے باندے صاحب جمعیت شو ـ تسلط تغلب تمام ئے پکښے پیدا کړ ـ

الحاصل گویند، در آن ایام که میرزا الغ بیگ بادشاه کابل شده جمعیت و حشمت تمام پیدا کرد، و ملک تاج‌الدین را شش یا هفت پسر بودند هر همه قابل و نامی ـ اول ملک سلیمان شاه که بر مسند ریاست و امارت اقوام خښی بسیار سال به استقلال تمام متمکن بود، و دویم سلطان شاه که برادر اعیانی ملک سلیمان شاه و پدر ملک احمد بود ـ و پوشیده نماند، که ملک احمد ملکے عظیم‌الشان ممالک گیر ملک یوسف زی بلکه ممالک گیر تمام ملک اقوام خښی بود ـ که احوال وے در محل خود ایراد خواهد یافت ـ سیوم بهرام که از تجّار و کاروانها طرق محصول می گرفت و جمع می‌نمود ـ چهارم خیرالدین، پنجم پائنده، که از غایت زور و قوت و عظمت جسامت ویرا هاتی میگفتند ـ و پسران دیگر را نامها به اینجانب معلوم و متحقق نه شد ـ

## ذکر منشاء مخالفت یوسف زی و ککیانی

الغرض د سلطان شاه مذکور لور وه او د ملک احمد خور وه فاطمه نامه - چه ډیره شائسته، جمیله پیغله وه، چه و چنګازیو موسیزیو، ککیانو ته، چنانچه د شبلی ابن توری او د حسن ابن چنګا و عزیزانو ته ئے ورکړے وه - او شبلی ابن توری او حسن بن چنګا دواړه چنګازی، موسی زی، ککیانی وو، چه په هغه وخت کښے په ککیانو کښے سرداری ملکی د دوئی دواړو وه - میرزا الغ بیګ ته دوئی دواړه ډیر پیش وو - اعتبار ئے پرے باندے از حد زیات وو - چغلئی به ئے د خلقو ډیرے کولے - په چغلئی سره مشهور وو -

الحاصل فاطمه مذکوره ابراهیم د ګدای (روڼی) الیاس زی، یوسف زی وتښتوله - له کابله ئے د کورمے ته راوستله - چه مقام د خیشکیو دے - نور په دغه سبب نیت د ککیانیو و یوسفزیو ته بد شهٔ - اما لکه چه یوسف زی هر ګوره غالب او قوت ناک وو، توان ئے نه رسیدهٔ، شب و روز قابو طلب وو، چه که فرصت مو بیا موندلے چه بد مو ورسره وکړلے، او میرزا الغ بیګ هم چه مستقل بادشاه شهٔ یوسف زیو ته ئے نیت بد شهٔ - په دا سبب چه یوسف زی هر ګوره غالب وو - د میرزا الغ بیګ پروا ئے نهٔ لرله د خپل اختیار څښتن وو - هر چه ملک سلیمان شاه او یوسف زیو کول هغه به کیدل، او ظلم تعدی هم د دوئی به ښهر د کابل او په دهات از حد زیاته شوه -

چنانچه سپاهی او ښهری او الوسی خلق د دوئی له لاسه په ځان ورسیدهٔ - چه بد خوئی، دست اندازی، شراب خوری، نور فسق

فجور د دوئی پیشه وه - تا حدے چه اسماعیل د مرکت زوئے
یوسف زے هسے بد مست او ظالم شرابی وو، چه اصیل خلق به ئے
په زور نیول او په یوه پیاله د شرابو به ئے خرڅول - او په بازار
کښے د کابل به ئے په زور و ظلم نرخ نرم کړ او ځیزونه
به ئے اخستل او نیاو ئے چا نه شۀ کاوۀ -

---

# ذکر تاخت میرزا الغ بیگ بر قوم گگیانی

الغرض ظلم و تعدی د دوئی په حد و کمال ورسیده، امّا چا لره توان د بز پرسئی نهٔ وو - آخرالامر درمیان یوسف زی و گگیانی به سبب قضیهٔ فاطمه مذکوره منازعت بر خاست - و دست اندازی شد - و فتنه قائم گشت - او د میرزا الغ بیگ او د واړو مغلو زړهٔ په دے ډیر ښهٔ شهٔ - چه نفاق او مخالفت د دوئی تر میان واقع شهٔ ، سره بیگانه شو - جانبین به ما ته محتاج شی - په ضبط کښے به مے راشی - نور میرزا الغ بیگ له مغلو سره مصلحت وکړ ، چه لښکر به پرے ناگتیانه وخیژوو، د گگیانو تومن به پرے ووهو - تاخت تاراج به ئے کړو - چه یوسف زی او گگیانی په مثال د دوو ښنګلو دی، چه د یو ښنګل مات شی، یعنی گگیانی زیر و زبون شی - یوسف زی به هم نور راته عاجز شی - ولے چه تنها به پاتے شی - او دا مصلحت د وهنے د تاراج د گگیانو ئے له ملک سلیمان شاه سره هم وکړ -

چنانچه په ظاهر خو سلیمان شاه ورته آرے وکړله - امّا په باطن کښے د گگیانو په وهنے راضی نهٔ وو - له دغه پسه میرزا الغ بیگ له لښکره سره په قصد د گگیانو د وهنے روان شهٔ - چه قتل او تاراج به ئے کړم - تر هغه میان سلیمان شاه خبر شهٔ پټ ئے گگیانو لره خبر ورستاوهٔ چه میرزا الغ بیگ راغے ستاسے تاخت لره وبه مو وهی - تاسے خبر شئ، خپل آلوس ترے وساتئ - گگیانی نور له هغه ځایه زر وتښتیدل - بل ځائے لره لاړل - میرزا الغ بیگ چه ورغے گگیانی ئے په هغه ځائے بیا نهٔ موندهٔ - زړهٔ ئے ډیر بد شهٔ - و خپل لښکر ته ئے وویل چه دا گگیانی چا پخوا خبر

کړه چه له خپله ځایه وتښتیدل؟ دوئی ورته وویل چه خدائے زده چه چا خبر کړۀ ـ او د ګګیانو تومن هسے ځائے لړه بیا تللے وو چه میرزا ورپسے تللے نۀ شۀ ـ قابو ئے پرے نۀ سازیده ـ

آخر میرزا ئے مذکور مایوس شرمنده له هغه ځایه په بیرته راؤجاروت ـ به شهر کابل رسیده تفحص و تحقیق بسیار کرد که آیا مردم ګګیانی را از الغار من کدام کس واقف نمود ـ آخرالامر چون چند روزے گذاشت ـ مردم ګګیانی بے مروتی کرده به میرزا الغ بیګ پیغام کردند که مایان را از الغار شما ملک سلیمان شاه که مدارالمهام شما است بدیں طرف کسے از معتمد علیه خود به طریق استعجال نزد مایان دوانیده واقف و آگاه ساخت ـ ځکه لۀ ځایه وتښتیدو، له هر څه سره هسے ځائے ته لاړو، چه ستا لاس را بالدے و نۀ رسیدۀ ـ

از استماع این خبر آزردگی میرزا وغیره مغولانش از ملک سلیمان شاه و الوس یوسف زئی به حد کمال رسیده حقد و حسد ایشان در بارۀ ملک سلیمان شاه و جمیع قوم یوسف زی نهایت انجامید، و شب و روز در قلع و قمع ایشان می اندیشید، و با مقربان خود خلوتها و مشورتها همیشه می کردند تا روزے میرزا الغ بیګ حسن ابن چنګا و شبلی بن تورے هر دو سرداران قوم موسیٰ زی ګګیانی بودند، چنانچه سابقاً ذکر ایشان گذشته است، هر دو را به ملازمت خود طلبیده مصالحه نمودند ـ و به انواع کرامات و مدارات سرفراز داشته فرمودند، که من با تمامی عساکر در مدد و معاونت شما هستم و از یوسف زئی بے زار و بے اعتبار شدم، باید که بروید و لشکر خود را جمع کرده به جنګ یوسف زی

به استعدادِ تمام بیرون آیند - که ما هم شاملِ حال شمایان خواهیم شد - چه یوسف زی ستاسے هم دښمن دی ځما هم دښمن دی، چه مو لاس رسیږی هیڅ صرفه په یوسفزیو مهٔ کوئ، او په دا ئے عظیم سوګند سره وکړ - چه اول تاسے لاس په یوسف زی بورے کړئ نور زهٔ هم له خپله جمعیت سره زر درپسے درغلم - عاقبت‌الامر ملکان ککیانی از میرزا الغ بیگ رخصت شده به تومن خود که در نواحی کابل بود رسیدند - .

---

## ذکر کیفیتِ جنگ یوسف‌زی به میرزا الغ بیک و گگیانی

### ۱ (جنگ غوره مرغه)

عساکر خود را مجتمع نموده مستعد شدند، و به عزم محاربه با یوسف زی به در آمدند و مقارن آن حال میرزا الغ بیگ نیز با لشکرِ عظیم خود آمد۔ با گگیانی شامل گشت و به هیئت اجتماعی به جانبِ یوسف زی متوجه شدند۔

چنانچه بعضی از گگیانی پیشتر رفته، غوائے د یوسفزیو وُنیولے را په مخه ئے کړے۔ تومن* د یوسف زو خبر شهٔ، لور د لوره مسلح ورپسے راووتل۔ هر گاه چه د یوسفزو لښکر گگیانیو وُلید تور لښکر د گگیانو او مغولو څلور صفه شو۔ یوسفزیو چه دوئ څلور صفه وُلیدهٔ یوسفزی هم څلور صفه شول۔ آخرالامر چه دواړه لښکره سره وخوځیدل په نیت د مقاتلے او د مقابلے سره ورغلل، جنگ عظیم مابین العسکرین سره واقع شهٔ۔ فامّا یوسفزی ترے لاندے وتل، داد د مردانگئ (ئے) ورکهٔ۔ لښکر د مغولو او د گگیانیو دواړه مات کړهٔ۔ شکست فاحش ئے ور لره ورکهٔ ډیر مغول او گگیانۍ ئے ووژلل۔ هغه جنگ ځائے چه نژدے و کاہل ته وو۔ او واړه پرے زرغونه مرغه ده هغه مرغه واړه په خون د مقتولانو د مغولو د گگیانیو آلوده او غوره شوه۔ ځکه د هغه جنگ گاه نوم غوره مرغه شوه۔ تا الیوم اهل افغان آن جنگ را جنگ غوره مرغه می گویند۔ و آن جنگ جائے را غوره مرغه می نامند۔

---

* قام، اُولس، خلق۔

القصه چه میرزا او گگیانی دواړه له هغه جنګ په ماتے لاړل میرزا کابل لره راغے ـ او گگیانی خپلو مسا کنو لره ورغلل ـ میرزا الغ بیګ هر ګوره ډیر خجل او منفعل شۀ ـ بیائے حسن ابنِ چنګا او شبلی ابن توری گگیانی ته ووېل چه د یوسفزو د وروک کولو او د قتلولو علاج بیا د کولو دے، حسن او شبلی ورته ووېل، چه میرزا صاحب! یوسف زی به بے ملائمته بے دلاسے په لاس کښینۀ ووزی البته صلح آشتی ورسره وکړه ـ چه ګوندے په دا رنګ وغولیږی په لاس دِ راشی ـ میرزا ورته ووېل چه که صلح ورسره اوکړم او په مدارات او ملائمت ئے راولم هله به ئے څوک مات کا ـ او څوک به ئے ووژنی ـ دوئی ورته ووېل چه ته ئے په عذر په دلاسه سره سرداران هلکان واړه راؤبوله ـ انعام اکرام اول ورکړه، بیا ئے په قراره لاس د ورستو وتړه و موږ ته ئے راکړه ـ انشاء الله تعالیٰ اول به ئے هله موږ مات کړو و به ئے وژنو ـ

چون این وعده میانِ میرزا و سرداران گگیانی از حسن و شبلی وغیرهما استحکام‌یافت بعد ازان میرزا عذر در پیش نهاد دلاسه او استمالت در پیش نمود و با سردارانِ یوسف زی خطوط متضمن لطف و مهربانی و انعام و اکرام نوشت به دست معتمد خود فرستاد ـ که ګناهان کرده و نا کرده، دانسته و نادانستهٔ شمایان به خلوص خاطر و صفاء طویت بخشیدم، پس بیا راځئ چه آشتی او یګانګی سره مستحکمه کړو ـ لکه پخوا مو سره زیست روزګار کاوۀ بیا به هغه هسے رنګ کوو ـ و بدست آن کسانِ خود مبلغ نقد به طریق تحفه نیز فرستادند تا وقتے که آن کسانِ میرزا با مکاتیب محبت اسالیب مع مبلغ به یوسف زی رسیده ملکان یوسف زی از آنجا

که گفته اند :

زر بلا دی اصیل بنده کا  چه طمع ئے نۀ وی په شاهانو خنده کا

از فریب قوم مغول که ضرب‌المثل است، غافل شده فریفتۀ منصوبۀ او کشته شادان شدند و آن مبلغ مرسوله را درمیان خود ها با یکدیگر تقسیم نمودند او سره به ئے وویل چه خرنګه بۀ وشو چه میرزا او ګکیانی مونږ دواړه مات کړۀ فتح مو روزی شوه او هم بیا میرزا محتاج شۀ په زارئ مو بولی ۔ بۀ به راسره وکه ۔ آخر په دا بللو بے عقله یوسف زی راضی شو ۔ ویسا او اعتبار ئے پرے وکړۀ ۔

سلیمان شاه مع جماعتے از کد خدایان یوسف زی همراه آدمان میرزا روان شده به ملازمت میرزا الغ بیگ به کابل رسیدند ۔ و میرزا معه امیران خود به استقبال ملکان یوسف زی بر آمده به اعزاز تمام به خانۀ خود در آوردند ۔ و خلعت هائے فاخره علیٰ حسب درجاتهم به آنها پوشانیده مبلغ بسیار مرحمت کردند و طرفه التفات و شفقات با اوشان مبذول داشتند مدامے که ان جماعت ملکان یوسف زی در حضور میرزا الغ بیگ بودند هر روز ضیافت می کردند بزم ها مے نمودند ۔

اتفاقاً روزے میرزا با امیران و ندیمان خود معۀ ملکان مذکور یوسف زی بزم شراب خوری کرده بودند ۔ اتفاقاً در ان روز چندے از جوانان رعنا و دلیر و شراب خوار که با جماعۀ کد خدایان یوسف زی که به ملازمت شهزاده آمده بودند غزلیات و خرافات بنیاد نهاده بد خصلتی میکردند و میرزا را کالمعدوم پنداشته شمشیرها و

کاردها را از بس لا یعقلی و مخموری از نیام ها کشیده ، د کوتو
دیوالونو ستنے به ئے پرے وهلے دست اندازئے بے ادبئے ډیرے
کولے ۔

دا مستی او بدی د دوئی په میرزا او په مغولو هم ډیره بده
ولګیدله، اما له ملاحظے د یوسف زیوئے اصلا دم نهٔ شهٔ واههٔ ۔ نور
د میرزا او د مغولو قهر غصه و یوسف زیو ته لا زیاته شوه ۔ بارے
لکه یوسف زی واړه مسلح راغلی وو ۔ د میرزا او د مغولو وار او
لاس پرے بر نهٔ شهٔ او قابو ئے پرے وُ نهٔ رسیدهٔ ۔ نور په دا
ګذار ئے زړهٔ ور کړهٔ انعام اکرام ئے ور کړهٔ ۔ و به خانهائے خود ها
رخصت فرمودند ۔ چونکه مردم اعیان یوسف زی خیلے سرفراز
شده به الوس خود ها رسیدند خوش وقت شده زیاده ازان بد مست
و متکبر گشتند و تسلط و تغلب از آنزیاده کردند ۔

---

## ذکر طلبیدن میرزا الغ بیگ یوسف زی را بقصدِ کشتن

الغرض میرزا مذکور بعد از چندگاه باردیگر بنیادِ عذر نهاده به ملک سلیمان شاه وغیره رؤسائے یوسف زی فرمان نوشتهٔ بدین مضمون فرستاد که ارادهٔ ضیافت بادشاهانه و قصد دادنِ خلعت هائے فاخره و انعاماتِ ذاخره علی حسب درجات شمایان به خاطر مقرر دارم، لازم که هر کسے از مشارالیه شمایان آمده حاضر شوید که به مراحم خسروانه هر یک سرفراز خواهم نمود ـ

چون این معنیٰ به گوش مردم یوسف زی رسیده از بے عقلی و بے فکری خود به ذوق مستی آمیدواری چنان، مستغرق شده چه چرتے سرداز او ملک او دلاور خوان وو، تر شیخ تر بزوکه پورے واړه سره جمع شول ـ واړه اووهٔ سوه میرهٔ ښاغلی نمایان سرهٔ ورغلل کابل ته لاړل ـ

وقتیکه به دیار میرزا رسیدند آدمان میرزا آمده ظاهر نمودند که حکم میرزا چنین صادر شده است که هیچ کس از شمایان با تیغ و سلاح اندرون نیاید پس هر چه که از اسلحه پیش خود دارید از بیرون گذاشته بعد ازان بروید، و لوازم کورنشات به جائے آرید ـ چون آن جماعت یوسف زی هر همه مسلح بودند هر همه بر طبق امر اسلحهٔ خود را گذاشته دست خالی اندرون رفتند و شرائط تسلیمات به جائے آوردند ـ

میرزا بر جمیع ملکان مذکور شفقت بسیار کرده دلاسا نمودند و به جمیع خوانین و امیران خود که درآن وقت حاضر بودند حکم نمود، که وقت بے وقت است، می باید که مردم یوسف زی

را به خانهائے خود برده تقسیم کنید، و هر یکے از شمایان ایشان را ضیافت نادره به کنید -

چنانچه هغه اووهٔ سوه میرهٔ یوسف زی واره ئے په امیرانو خانانو خپلو ُوویشل او هغو یوسف زیو ته هم میرزا دا ُوویل چه ما حکم کړے دے ، نن وقت به زما امیران تاسے تقسیم کاندے مهمانی به خپله هر څوک در کوی - تاسے جماعت جماعت له هر یوهٔ امیره سره ځئ- عاقبت هغه اووهٔ سوه یوسفزی له هر یوهٔ امیره سره په حسب د حکم ورسره لاړل خپلو کورونو لره ئے بوتلل په بیانه د مهمانئ ځائے پر ځائے در خانهٔ خود نشاندند -

بعد ازان آدمان میرزا در عقبش رفته به هر یکے امیر و خوانین خود گفته، چه د یوسف زی ځائے په ځائے لاسونه مشک د ورستو، محکمے ُوتړئ او را ئے ولئ، چنانچه هغه یوسفزی واره چه جماعت جماعت په بهانه د ضیافت هر یوهٔ امیر کره بے خبره بے پروا ناست ُوو ، واره ئے لاس د ورستو ُوتړل او را ئے ُوستل -

لکه چه دوئ واره تش لاستی ُوو د لاسه ئے هیڅ ُونشول او هغو مغولو به هم ورته وئیل چه څه ُوشو که مونږ وتړلی میرزا به بیا دربانده بیگاه ته مهربان شی پرے به موړدی -

## بستن تمام جرگه یوسف زی را میرزا الغ بیگ در کابل

الغرض بدون ملک سلیمان شاه جمیع آن هفت صد کس را خانه به خانه دست بر کتف بستند و به دربار میرزا حاضرآوردند و ملک سلیمان شاه را فرو گذاشتند زیرا که میرزا ممنونِ احسانِ وے بود و رعایت آداب وے بسیار می کردند ۔

القصه چه یوسفزی وتړل شو، پس له هغه حکم د میرزا د دوئ په باب کښیے دا هسے صادر شۀ ، چه لاس تړلی دوئ راولئ پس له هغه ئے گردنونه ووهئ ۔ چنانچه خوانینو او کسانو د میرزا دغه رنګ وکړل چه واړه اووۀ سوه کسه یوسفزی (ئے) لاس تړلی د میرزا دربار لره راوستل ۔ نور ئے ودرول او ملک سلیمان شاه خلاص وو باز حیران پریشان وو د یوسفزیو او د میرزا تر میان گرزیدۀ و میرزا ته ئے زاری شفاعت د یوسف زیو د خلاصئ کاوۀ ۔

او میرزا په هغه وقت کښیے له دیوان خانے بیرته بل ځائے وو پټ پکښیے ناست وو په دا میان کښیے پنځه کسه یوسف زی رانړیزی بښۀ سری چه یو پکښیے کوثر ابن ملا حسین زانړیزے اتمان زے وو او څلور نور هم ورسره وو ناګهانه ئے بے خبره له خپلهٔ تومنهٔ په دا یوسف زی پسے راتلل په دغو لاس تړلیو یوسف زیو کښیے راکښیوتل څنو یوسف زیو ورته وویل چه زمونږ تاسے راپسے څه بدو راوستئ، دوئ غریبان حیران شو لکه مغولو چه دوئ ولیدۀ د دوئ د پنځو واړو لاسونه ئے ورستو محکم وتړل ۔

## مکاشفهٔ شیخ عثمان علیه الرحمة

او حضرت زبدة المکاشفین عمدة الاولیاء شیخ عثمان بن موتی مولیزی قدس سره هم په دغو مظلومانو کښې لاس ترلے ولاړ وو ـ په دغه میان کښې شیخ عثمان دغو پنځو واړو ـ رانړیزیو ته غږ وکړ چه " تاسې چرته خدائے راوستلئ" ـ دوئ ورته ووئیل چه "دا ځمونږ قام وو راغلے وو، مونږ وربسې راغللو له دے هسې حاله خبر نهٔ وو" ـ شیخ عثمان ورته ووئیل چه " اووهٔ سوهٔ کسه یوسف زی چه ما پر منبر لیدل چه په یو ځائے قتل شوٗ تاسې خو بے ورځره نهٔ لیدلئ، چرے خدائے دلته راوستلئ" ـ دوئ بیا ورته ووئیل چه " په قام پسے راغللو هیڅ خبر نهٔ وو "

القصه در آن روز که میرزا قتل یوسف زی می کرد ـ روسایئے ګګیانی نیز حاضر بودند فی‌الفور ایشان را طلبیده، ورته ئے ووئیل چه " دا دی اووهٔ سوه غوره بناغلی مردان د یوسفزیو لاس ترلی ہے و تاسے ته درکړل ـ او لاڼے هم تاسے کړے وے، چه اول به ئے مونږ هله مات کړو اوس د څو غټو ملکانو سرونه تاسے پڅپل لاس پریکالړئ پس له هغه د هغو لورو سرونه به ځما جلاذان ووهی" ـ

آخر ملکان د ګګیانو او جلادان د میرزا هغو ترلیو لره توری وکښلے په لاس ورغلل ـ

گویند که ملک سلیمان شاه هر چند آمد و رفت میکرد و زاری و شفاعت در باب مخلصی یوسف زی می نمود ـ اما فائده نکرده او سلیمان شاه په زار زار ژړل تر دا میان به گزیدهٔ ـ

آخر میرز اورته وُوئیل چه "ملکـ! تهٔ ولے ډیر ژاړے - ستا مرګ خو نشته تهٔ خو ہے معاف کړے ئے چه تهٔ ہے پلار ئے۔"

سلیمان شاه ورته ووئیل چه "زهٔ د خپل [خان] په مرګ ډار نهٔ یم خو یوه خبره ہے ارمان شوه، چه څمونږ شیخ عثمان، چه تهٔ لا هلکـ وے او څما په زنګانهٔ ناست وے لوبولے مې، یوه ورځ ستا په باب یوه خبره له کشفه ما ته وئیلی وه او لهٔ دے حاله نے راته آګاهی کړے وه - بارے ما پرے عمل نهٔ کاوهٔ، هغه ورځ دا ده، حال ہے ستا اوس اولیدٔ" - نور میرزا ورته وُوئیل چه "تهٔ مه ویریږه تهٔ ہے پلار ئے" - بیا سلیمان شاه ورته ووئیل چه "نهٔ ما پسهٔ غیر کښیے په خپل زنګانهٔ ناست لوئے کړے، بادشاه ہے کړے - ډیرے نیکئے مے درسره وکړے اوتا زهٔ پر پلار بللے دم - څما هر ګوره ډیر حقونه ستا په ذمه ثابت دي، هسے ته ګوره دا خلق مهٔ وژنه - او کهٔ ورته نهٔ ګورے نور دا درے عرضه خو ہے قبول کړه - پس له هغے ئے مړهٔ کړه" - میرزا ورته وُوئیل - "درے عرضه کیږم - کوم دي راته ووایه" -

سلیمان شاه ورته ووئیل چه :-

اول عرض ہے دا دے چه اول ما تر هر چا اول وُوژنه، چه دوئی په سترګو نهٔ وینم - چه د دوئی د خونونو ګناه څما په غاړه نهٔ شي - ولے [چه] شیخ عثمان ستا له حاله راته دا رنګ وئیلی وُو - او ما نهٔ منل - او تهٔ ہے لویولے بادشاه ہے کړے -

او دویم عرض ہے دا دے چه :-

څما په ځائے ملک احمد د سلطان شاه زوئے، څما ورارهٔ چه تړلے شوے دے، وئے بخښه، به ئے وژنهٔ - (مخفی مه شه چه ملک

احمد بن سلطان شاه بن ملک تاج‌الدین په دغه وخت کښې بې ریشه زلمے وو - پیره نې نه وه تخمیناً پانزاده (۱۵) ساله وو - و چون از عهدِ خوردگی آثار رشد و قابلیت و اطوار بزرگی و ریاست در جبینِ او هویدا بود عقل و فراست بے نهایت میداشت خوش زبان و خوب تقریر بود و ملک سلیمان شاه او را از فرزندان صلبی خود هم دوست تر میداشت و تربیتش بیش می کرد، ازین سبب ویرا نیز در این مرتبه همراه خود به ملازمت میرزا آورده بود) دے هم ترلے شوے وو -

الغرض پس له هغه ملک سلیمان ووئیل چه :-

دریم عرض مے دا دے، چه مونږ دا اووه سوه (۷۰۰) میړهٔ چه یو بے احمده، واړه وژنه - نور د یوسف زو په الوس غرض مهٔ کوه - قتل تاراج او بند هم مهٔ کوه او هر چرته چه ځی پرېږده - منع ئې هم مهٔ کوه -

میرزا ورته ووئیل چه ښه ملک! دا درے عرضه مے د قبول کړل هسے و به کړم -

گویند چه ملک سلیمان شاه د احمد د خلاصی عرض و میرزا ته کاوهٔ - حسن ابن چنگا او شبلی ابن توری دواړه ګګیانی میرزا څخه حاضر وو - دوئی دواړو سره ووئیل چه د سلیمان شاه عقل خوځیدلے دے - کوردیده دے ځان نه خلاصوی چه الوس پرے ودان دے - احمد خلاصوی چه لا خام هلک دے، دے به قام لره څه وکا -

ملک سلیمان شاه دا خبره واوریدله - ورته ئې ووئیل چه

ما عمر خوړلے دے او احمد لا زلمے دے ـ امید دا هسے دے ـ چه دے به قام وساتی وذان به ئے کا ـ

الغرض میرزا الغ بیگ دړے واړه عرضه د سلیمان شاه قبول کړل ـ و احمد را زنده گذاشته و به عوض وے حکم کشتن ملک سلیمان شاه کرد ـ چنانچه ملک مذکور همراه آن دست بسته ها رفته در موقف عرض ایستاد ـ او په دغه وقت کښے وائی چه دوئی خپلو سره ووئیل چه صاحب کشف او د باطن سوارهٔ په موږ کښے دا ورځ چا لیدله کهٔ نه ـ څوک دیدبان وو کهٔ نهٔ وو ـ

شیخ عثمان علیه الرحمة ورته ووئیل چه "تاسے دا خپل ملک وپوښتئ چه لا ډیر پخوا ما ورته څه وئیلی وو ـ له دے چارے ما دے خبر کړے وو کهٔ نهٔ وو" ـ ملک ووئیل چه "او شیخ رښتیا وائی له دے حاله دهٔ ما ته وئیلی وو ـ بارے ما د دهٔ خبره و نهٔ منله ـ هغه ورځ دا ده چه دهٔ ئے خبر راته کاوهٔ ـ په سترگو بے ولیدهٔ" ـ د هغه پس شیخ عثمان په زوره دا وینا ووئیله :

چه دا دود مرو لیدهٔ ـ بل غارگه* (ئے) ارویدهٔ
د خدائے په کړهٔ ئے لاس نهٔ رسیدهٔ

الغرض شیخ عثمان پس له هغه ووئیل چارے دا دهٔ چه ما لیدله را پیښه شوه ـ بارے ما لیدلی وو چه په هغه واقعه کښے به تور قوال هم زاسره وی او دے اوس نشته دا څه رنگه

* بلغاک: شور، فریاد، چغے سورے، (اصل مسوده کښے بل غارگه لیکلے شوے دے ـ

خبره ده ـ ناګاه په هغه ساعت کښې تور قوال هم حاضر شۀ راغے
چه قندهار لره په منبر تللے وو ـ په هغه وقت خدائے راوست ـ
بے خبره په دربار راننوت خو چه له ورایه ولیدۀ شۀ ـ شیخ غږ
وکړ چه وګورئ هغه دے تور قوال هم راغے ـ په دے واقعه
کښے راسره شریک شۀ ـ دا خمونږ قتل اوس رښتیا شۀ ـ هغه واقعه
رښتیا وه په تحقیق هم دا رنګ یے لیدله لکه چه راغلله راپیښه شوله ـ

و این تور قوال از جملهٔ نامی شیخان و درویشان یوسفزی
بود ـ و دز مولیزی میباشد و الحال نیز درینوقت در مردم مولیزی
جماعتے از اولاد او هستند که آنها را قوال خیل می نامند ـ

ـ القصه گویند در آن وقت که سرداران گګیانی و جلادانو
میرزا برائے کشتن یوسف زی روانه شده نزد ایشان رسیدند و همگی
شمشیر ها کشیدند ـ در آن وقت حسن ابن چنګا و شبلی ابن توری
ګګیانی ملک سلیمان شاه ته دا جوړه ووئیله :

لکه وایو هسے دینه ـ لاس ترلی خدائے راکړی
اوس به مو ووژنو لکه پسونه

در جواب ایشان ملک سلیمان شاه این رباعی گفت :

که جنګ وے په یرغونه تۀ به رانغلے په مړونه
لکه نے لاس ترلی درکړو اوس مو وژنه لکه مېږونه

پس له هغے اول حسن د چنګا او شبلی د توری د ملک سلیمان شاه سر
په توره وواهۀ دغه پسه دوئی دواړه پرے ولګیدۀ هیڅ تقصیر نے
پرے و نۀ کړ ـ د ډیرو غتو ښو مړونو کردنونه نے ووهل ـ
نور د میرزا جلادانو لور تر لوره پرے راکینښوے د وارو

گردنونه ئے ووهل چه د شيخ عثمان كله ئے ووهله، څورلته له تنے ئے لاړه، نور د خدائے په حكم په هغه ځائے تر ډيره ځرخيدله اوپه ځخله ئے په زوره حق حق وئيل او تنه ئے هم هسے په ځائے تر ډيره سر پريکړے ولاړه وه ۔ چا بدبختو جلادانو په لاس په وريژنه تيل وهله په زمكه ولګيدله ۔ پس له هغه، كله ئے له ځرخيدو او ځخله ئے له حق حق وئيلو پاتے شوه ۔

از مشاهدهٔ اين كرامت عظيم شيخ عثمان عليه الرحمة هم جلادان در رعب و هراس آمدند ۔ گويند در آن وقت چون نوبت قتل كوثر ابن ملا حسين رانړيزى اتمانزى رسيد، چه په يوسف زى كښے د ملا حسين كور آستانه دار بزرگوار دے او دعا هم يوسفزى له دوئ راپيرى ۔ لكه چه جلاد په تيره توره په زوره گردن د دهٔ واهه اصلا غوڅ [ئے] نهٔ كړ ۔ هغه جلاد حيران و ترسان شهٔ چه دا څه رنګ بزرګ سړے دے چه دا هسے تيغ ئے نهٔ غوڅوى ۔

آخر هغه جلاد فى الفور پيش ميرزا، رفته احوال تن و كله شيخ عثمان و نابريدن شمشير تيز كردن كوثر بن ملا حسين معروض داشت، ميرزا متحير شده گفت كه تو دروغ ميگوئى ۔ اينچنين نه خواهد بود ۔

آخرش ميرزا خپل سړے معتمد ورسره كړ لاړ شهٔ، هغه جلاد بيا كوثر په توره وواههٔ بيا ئے غوڅ نهٔ كړ، نور ميرزا ته هغه سړے راغے وئے وئيل چه هغه جلاد رښتيا وائى، څما د وړاندے په توره په گردن وواههٔ ۔ تورے پرے اصلا كار و نهٔ كړ ۔

آخر ميرزا حكم وكړ چه كوثر راولئى په امان د وى ۔ چه

کسان د میرزا ورغلل خلاصاوهٔ ئې، کوثر ورته ووئیل، چه ما یوازے مهٔ پرانیزئ، که دا څاور ملهٔ چه لهٔ ما سره راغلی دی، خلاصوئ هالهٔ ما هم خلاص کانړئ او که دوئ نهٔ خلاصیږی ما هم مهٔ خلاصوئ -

آخر کسان میرزا بیش میرزا رفت احوالش را بیان ساختند تا کوثر را معهٔ چار رفیق خلاص نمودند و ازان مهلکهٔ عظیم بدون کوثر معهٔ رفقاء اربعه و احمد ابن سلطان شاه برادر زادهٔ ملک سلیمان شاه که مجموع شش کس بودند دیگرے هیچ کس از آن هفت صد کس زنده نمانده همه را به قتل رسانیده شهید ساختند - و این سلیمان شاه پسر ملک تاج الدین بود، ملک تاج الدین مردے عالیجاه و صاحب شوکت بود - در وقتے اقوام خښی یعنی یوسف زی و ګګیانی و ترکانی در نواحی قندهار در بقاع ګارے، و نشکی، و دوک، و ډاک، سکونت مے داشتند همه تابع و فرمانبردار او بودند -

الغرض چون همه آن هفت صد کس یوسفزی را مقتول ساختند میرزا الغ بیگ حکم نمود تا این همه مقتولان را بیرون شهر کابل برده دفن کنند - بنا بر حکم وے همه را برده مابین مشرق و شمال به مفاصلهٔ دو سه تیر پرتاب از کابل بر موضع سیاه سنګ دفن ساختند و آن مقبره را هنوز خطیرهٔ شهیدان یوسفزی میګویند، و تا الیوم معلوم و عیان است و قبر شیخ عثمان بن موتی موایزی قدس سره که سابقاً مذکور شده نیز در آنجا معروف و مشهور است - یتزار و یتبرک به

الغرض دا چه هغه واړه یوسف زی شهیدان شو او پنځه کسه رانړیزی او یو ملک احمد بن سلطان شاه مجموع شش

از آنجا خلاص شده به الوّس خود رفتند۔ گویا که آن روز روزِ قیامت بود که در خانه مانمے و المے ظاهر گشت و میرزا نیز به موجب وعده که با ملک سلیمان شاه کرده بود با اهل و عیال یوسفزی مزاحم نه شده سر خود گذاشتند اما افواجے را فرستاده تا ملک ایشان را تاخت و تاراج نموده مال و مواشی ایشان بیارند، حتیٰ که جامهائے ایشان نیز نه گذاشته خالی و برهنه بگزارند تا هر کجا که مے روند بروند۔

چنانچه حسب الحکم لشکر وے رفته مطابق امر او به عمل آوردند۔ [چنانچه] هر څه ئے له یوسف زیو را پیروڼه، تش سړی ئے پریښوۀ۔ گویند چه په دغه حادثه کښے نور هیچا څخه څه پاتو نۀ شوۀ مگر خزانه د موسی ابن ایسکو خلاصه شوه او نور دوئ مطلق العنان کړل۔ تا هر چه دانند بکنند و هر طرف که صلاح دانند بروند۔ کسے مانع ایشان نه گردد۔

چون احمد معهٔ آن پنج کس رانیزیزی به خانهائے خود رسیدند و مردم سابقیه یوسف زی که در خانه بودند ټبلـه تول شول معرکه ئے سره وکړه چه اوس څه بویه۔ آخر وارو ټبله وَوئیل چه نور مو دلته په دا ملک کښے ځائے نشته۔ آب و خور مو د دے ځائے تمام شۀ له دے۔ ملکه اوس تلل بویه، لکه دا د تللو مصلحت هر چا سره خوښ کړ نور ئے خپلو ستانه دارو مشائخو ته وَوئیل چه تاسے راته ووایئ چه د یوسف زی ملک کوم دے۔ چرته درومو۔

شیخ زنگی ابن ملا خلیل رانړیزی خواجه خیل طاب ثراه که در میانِ ستانه دارانِ یوسف زی به کشف و کرامت مشهور

صاحب ولایت بود ،فرمود چه اے یوسف زیو دروښی ځمونږ ملک سوات دے ـ خدائے به ئے راکا، بارے په سوات کښې یو ملک دے نوم ئے باړوان دے، په باړوان کښې د زاړو ډیرے ځما شکرانه کانړئی و ما ته ئے راکړئی ـ نور دوئی د زاړو ډیرئی د دۀ شکرانه کړ ـ او په دا وعده سره واړو فاتحه ولوستله، بیا واړو هغو یوسف زیو د ملک سلیمان شاه په فرموده چه په وقت د شهادت ئے وئیلی وو چه د یوسف زیو ملکی د د احمد وی، چه دے به قام وساتی او ودان به ئے کا، احمد ئے د درست خپل تومن ملک کړ ـ

ملا حسین رانړیزی اتمان زی د کوټر مذکور پلار، چه په یوسفزی کښې مستجاب الدعوات ولی وو ـ چنانچه تر اوسه پورے په یوسفزی کښې د ملا حسین کور ستانه‌دار دے ـ هره چار چه وی چه د دوئی د کور سری حاضر وی دعا په هغه چار هغه کا ـ او له هغه پر هسے چه د ملا حسین دعا په احمد بن سلطان شاه پورے شوله ، یوسف زے ډیر ښۀ ودان شۀ او پس له هغه یوسف زی د دۀ د اولاد دعا هم پر شونګړ نسی، چه د دوئی د کور سړے حاضر وی هر مهم او حاجت چه وی ورته وائی چه تۀ د ملا حسین د کور سړے ئے دعا راته وکړه، چه حاجت مے خدائے پوره کا او د ملا حسین اولاد تر تن ورځے پورے شته دے ـ

الغرض ملا حسین له میانه د یوسف زیو پاڅید یوه لښته [ئے] پرے کړه د احمد په لاس ئے ورکړله چه ورځه د وګړی مے ملک [کړے] او ملکی د مبارک شه ـ نور هر چا سره په هغه زمان د ملکئ مبارکی احمد ته ورکړه فاتحه ئے د خیره سره ولوستله ـ

چنانچه بعد از آن روز ملک احمد سردارِ تمام یوسف زی شده بر مسندِ ملکی و سرداری یوسف زی قائم مقام ملک سلیمان شاه بنشست و کارِ وے روز به روز در ترقی میگشت تا با اوج دولت و حشمت رسیده ملکی عظیم الشان ممالک ستان گشت چنانچه احوالش در محلِ خود ایراد خواهد یافت ۔

القصه یوسف زی بالکل خوار و زار و حیران و پریشان خانه وار له خپلو کهو سره چه په نواحی د کابل ؤو په بکته پښاور ته را روان شو ۔ بارے دوئی هر کوره بے توښے، بے خرڅ، بے بار کیره پلی در مانده ؤو، هیڅا څخه څه پاتو شوی نهٔ ؤو ۔ هسے مغواو نتلی ؤو ۔ مگر د خدائے په حکم خزانه د موسیٰ ابن ایسکو ابن چوبل ابن بازید ابن اکو یوسف زی پاتے شوی وه ۔ چه په یوسف زی کښے لوئے نامدار سردار تیر شوے دے ۔ اولاد ئے لا تر اوسه پورے پیړئی په پیړئی سرداران راغلی دی او موسیٰ خیل واړه د دهٔ له پښته دی ۔

الغرض وائی چه دغه خزانه خدائے له دغه هسے تاراجه سلامت پاتے کړے وه ۔ نور هغوئی دغه خزانه په وقت د کوچ راواخستله ۔ خپلے کهولئی* ته ئے وویل چه څومره خزانه خدائے له دے هسے تاراجه پاتے کړه او د نور قام مو لاړله تر دا به څومره پر قام نوره سختی نهٔ وی ۔ بائدهٔ دی چه دا خزانه پر دا تنکسه په دوئی پریویشو، چه قام مو پرے تازه شی د هر چا خوراک توښه پرے وشی ۔ عورتے ورته وونیل چه ښه خبره دِ وکړه ۔ او آخر موسیٰ هغه خپله خزانه واړه چه نقدِ مبلغ ؤو په واړو وویشله تمام قام [ئے] پرے شتهٔ کړهٔ ۔

* تبر ۔

# مقام دوم

## در ذکر رسیدن یوسف زی به پشاور و دوآبه و باجور از دلزاک و گرفتن اشنغر و جنگ کردن یافتن ملک ایشان سع دلزاک سکنهٔ کاله پانړی

القصه د کابل په دا لویه بادشاهی لار یوسف زی خانه وار له کهو سره پښاور ته را وکوچیدل، چه په خیبر راغلل، وائ چه پکښې بوه لویه ونه د سربېن د ونے ولاړه وه - یوسف زی واړه سره عورتے سړونه، لوئے هلک، تر هغې ونے لاندے کښیناستل، خو هونبره یوسف زی وو چه واړه د هغې ونے تر سوری لاندے ځائے شو -

آخر چه یوسفزی تر خیبره را نیر شو پښاور لره راغلل په هغه وخت کښے په پښاور میشت دلازاک هر کوره ډیر زوراور، ممالک گیر تومن وو هر چرته ئے دا ملکونه په زور لاندے کړی وو پرے براتهٔ وو - پښاور، دوآبه، باجوړ، ننګرهار، کاله پانړی، تر هزارے تر سینده پورے دا واړه ملکونه د دلزاکو وو - هر چرے دوئ پرے ساکن وو - یوسفزی [قام] لور دلزاکو لره التجا راوړه، راغے ورپورے میشت شه - دلزاک سره معرکه شو د یوسف زیو د ملک د پاره - چه یو ملک ورکړے بویه، چه پرے وملی آباذان شی - چه یو کلے سړی راغلی دی، مونږ لره بایدهٔ دی چه یو ملک ورلره ورکړو - آخر د دلزاکو اتفاق په دا وشو چه دوآبه یوسف زیو ته ورکړے بویه - آخر ئے نور یوسف زیو ته ووئیل چه دوابه مونږ درکړے مبارک مو شه، ورځئ پرے وملئ -

ملک احمد ورته ووېل چه اے دلزاکو! ځما قام کوفته
مانده ناتوانه ورستو دے چه راتلاے له کابله په هیڅ رنګ نهٔ شی
په بیرته په کابل او په نور هر چرته ډیر پاتو شوے دے - هر
چه د قوت، د استعداد خښتن وو، هغه دا دی راغلی دی، نور لا
پاتے دی راپسے به راشی، یوازے دوآبه لږه ده، تومن به مے
پرے ځائے نهٔ شی - او ګذران به ئے هم پرے و نهٔ چلیږی -
دلزاکو ورته ووئیل چه مُنه په دوابه پورے دانشکول، عنبر لهٔ
باجوړ هم دی - دا مو هم لهٔ واړو ملحقاتو مضافاتو سره درکړے
ورځې ستاسے د وی - ملک احمد نور خوشحال شهٔ دا ملکونه ئے
قبول کړهٔ بیا دلزاکو ورته ووئیل چه اشنغر هم په دوآبه پورے
دے، که څهٔ قوت زور مو وشی اشنغر هم په خپله توره له
شلمانیو واخلئ، پرے متصرف شئ -

ګوېند چه په دغه وقت کښے اشنغر د دلازاکو نهٔ وو، په کښے
شلمانی وو، او شلمانی په ذات از جملهٔ قوم دهګان دی، له شلمانه
له کرمانه چه له توابعه د تیراه دی راغلی دی - اصل وطن ئے
شلمان کرمان دے - ځکه دوئ په شلمانو منسوب دی -

القصه اشنغر په هغه وقت د شلمانو وو، شلمانو خوړ، او
سلطان پکهل چه د سوات سلطان وو - د دغهٔ رعیت وو - ګوېند
چه له اشنغره به پورته و سوات ته تر بګیاړے، تر حصار بلوله*
تر شیر خانے تر مهورے، تر سواته او ټوټئ، سروبئے او سیورنے

---

* دے حصار بلول ته نن ورځ سری بهلول وائی، دا د تخت بائی
نه دوه درے میله مردان پله یو د خاورو ډیرئے ده، او کلے
پرے آباد دے -

د ملاکنډ تر غاښيه او درست سوات سره له توابع مضافاتو او درست بونير وازه د سلطان پکهل ووه، هر چرے سواتی دهګان پرے میشته وو د دهٔ رعيت او مال ګذار وو، د دهٔ حاکم، شقدار، ګماشته هر څه پکښے ناست وو او شلمانی د دهٔ په حکم په اشنغر کښے اوسيدل او حاکم د اشنغر په حصار کښے ناست وو ۔

سلطان پکهل خود در حصار منګلور که تخت ګاه سلاطين سوات است سکونت ميداشت و در عهدِ سلاطين سوات آنجا نهايت آبادان بود، و بيرون و اندرون اماکنِ غريبه و منازل عجيبه و قصور رفيعه و انهارِ نادره و اسواق و دکاکين پيوسته ميداشتند ۔ و جملهٔ سلاطين سوات چنانچه سلطان پکهل وغيره از اولادِ سلطان جهانګير است ۔

ميګويند و ايشان بسيار پشتِ سلطنت ملک سوات کرده آخر ايشان اويس بود که مردم يوسف زی به محاربات عظيمِ متعدده از آنجا مستاصل ساخته بدر نمودند، و به ملک سوات خود متصرف شدند، چنانچه سلطان اويس از آنجا فراری شده در ملک نياګ درميان کوهِ کنفار قلعهٔ محکم بنا ساخته متحصن شد ۔ تاوقتيکه در آنجا بود که سواران اجل بر سرِ وے تاخت نموده رخت وجود او را به غارت بردند و او در آنجا مدفون شد و سلطان اويس پسر سلطان پکهل بود که احوال تمامی سلاطين ايشان در محل خود به تفصيل مرقوم خواهد شد ۔

## رجعنا الی القصه

هر ګاه چه دلزاکو له يوسف زيو سره جنګ وکړل ملکونه مذکوره ئے ورته ورکړل، يوسف زی له پښاوره راڅکوچيدل ،

کلهو سره راغلل، په دوآبه میشته شو او هغه یوسف زی کنډے، یتیمان خلق چه د کابل پر نواحی پاتو شوی وو او سوداګر هم چه شکته پورته تلل وو وریسے ورځ په ورځے راتلل، پر دوآبه پریمیشته، او مواشی دار کوچیان یوسف زی له کوروتو سره، له میر جمال بن بازید مندړ امان زی سره، ذکر به ئے به خپل محل کښے وشی، پورته دانشکول او عنبر ته لاړل ـ څوک په دانشکول په عنبر کښے پاتو شول او څوک لوئے لوئے نامداران کورونه د مندړو زیات امان زی، کمال زی، ماموزی او له یوسف نامے زیات خواجوزی لکه ناصر بن شرغه علاؤالدین زے او مبارک بن پائنده مولیزے پائنده خیل او الیاس بن دلځک سولیزی ابابکر خیل او الکی بن احمد شامیزے چه نامداران سرداران وو، پورته و باجوړ ته لاړل په موضع د لاشوړے چه اوس پرے د قطب الزمان شیخ میر داد افغان خیل موتیزی ترنکی قدس سرہ، قبر واقع دے پریمیسته، په دا قصد چه باجوړ هم څمونږ دے دلزاکو را کړے دے پرے به میشتیږو ـ

ګویند چه ملک هیبو بن جته دلزاک عمر خیل په هغه زمان یو لوئے نامدار څرګند ملک وو، زرو کورو کم و بیش عمر خیلو سره په باجوړ کښے په جندول کښے اوسیدهٔ او عمر خیل په دلزاکو کښے قبیلهٔ مردانه وه ـ لکه دلزاکو د پښاور دوآبه دانشکول او عنبر او باجوړ واړه یوسف زو ته ورکړل ـ په هغه وقت کښے په هغه جرګه ملک هیبو مذکور حاضر نهٔ وو ـ د دهٔ بے پښتنے بے اتفاقه ئے باجوړ ورکړے وو ـ آخر لکه ملک هیبو چه دا واوریدهٔ چه یوسفزی څی و باجوړ ته، او درست خپل ګنړی ـ ملک هیبو په قهر په غصه شهٔ، وے وئیل چه څه شو که

نورو دلزاکو باجوړ و یوسف زو ته ورکړ، زهٔ به ئے ور نهٔ کړم ـ هغه کوم دلزاک دے چه څما ملک ئے یوسف زیو ته ورکړے دے ـ ملک هیبو غریدهٔ، لاڼی شاڼې به ئے وهلے چه څه مجال د یوسف زیو دے چه جندول لره به راشي، یوسف زو سړی څوابونه هیبو لره ورستول چه مهٔ کړه نور درست تومن دلزاکو په اتفاق سره باجوړ ما ته راکړے دے ـ تهٔ ئے هم را پریږده، کښته هر چرته چه نور دلزاک اوسي ـ هورے تهٔ هم ورډروسه، رُخ د د بدئ نهٔ دے ـ ملک هیبو دا ورته ووئیل چه خدائے جل جلاله یو دے ـ بے جنګه بے زوره به زهٔ باجوړ در نهٔ کړم ـ لکه د دے حاله دا جمیع اولس د دلزاکو خبر شهٔ ـ

به معرکهٔ تام خط از طرف خود به ملک هیبو نبوشته فرستادند ـ چه مه کړه مونږ واړو باجوړ یوسفزیو ته په انصاف په یګانګئ ورکړے دے ـ تهٔ ئے هم ورتهٔ پریږده، را ولیږده له باجوړه راځه، مونږ سره دلے دا ملکونه هم ډیر دی ـ دا به سره خورو ـ ملک هیبو د هیچا وینا نهٔ منله نظرئے په شر وو، او د جنګ په اختیار وؤ ـ آخر هغه یوسف زی چه خانه وار ورغلی په لاشوړه میشته ُوو، عزم ئے وکهٔ چه ورځو په جندول به ملو ـ ولے چه په باجوړ کښے بهتر ملک خو جندول دے ـ او دوئ زاغلی هم د جندول په نیت ُوو لکه یوسف زی په لاشوړه میشته ُشو ـ

ملک هیبو با رعونت و غضب تمام له تمامی لښکره سره له جندوله راوکوچیدهٔ په نیت د جنګ راغے، پاس پر لکه تیره، چه عین لا تر اوسه د لاشوړے د رود په غاړه ولاړه ده ـ هورته

پریمیشت شو ۔ او لښکر د یوسف زی له میر جمال امان زی سره په توپ په ځړنئی پروت وو ۔

چنانچه مفاصله درمیان عسکرین تخمیناً یک میل بود و در وقتے که یوسف زی در مواضع لاشوره می بودند بعد از یکسال کم و بیش قطب‌الزمان جدی شیخ میر داد افغان خیل متی زی نور الله مرقده، نیز باجمعے مریدان افاغنه که سیصد و پنجاه نفر کم و بیش بودند زیاده در آن مردم خلیل از خلیل رنجیده با اهل و عیال از ترنک و قلات من نواحی قندهار آمده در موضع لاشوره با یوسف زی استقامت گرفتند ۔ و اکثر یوسف زی گرویده و معتقد او شدند و پس از چند گاه به یک حادثه از حادثات تمامی الوس خلیل خانه وار کوچیده متعاقب شیخ میر داد آمده در موضع لاشوره استقامت گرفتند ۔

الحاصل خلیل هم له یوسف زیو سره یو شۀ ۔ او هیبو ین جته ته په جنګ ودریدۀ او دا دلے هم د دوآبے یوسف زی (هم) دواړه په جمیعت تمام جریده په مدد د خپل قام له دوآبے باجوړ لره ورغلل، یوسف زی او خلیل دواړه سره د لاشوړے په میدان چه اوس په دا زمانه پرسے د عربانو قلعه او ښهر دے نموداری ئے وکړه ۔ هیبو خو چه د دوئی لښکرے ولیدے له خپله لښکره سره تول مسلح مستعد له لګے تیرے په یو ځله راوخوځیدۀ په نیت د مقابلے او د جنګ راغے میدان لره لکه یوسف زیو او خلیلو چه د دۀ لښکر ولیدۀ، له هیبته پسته شو، مخ و سنګر خیل ته روان شو ۔

لکه ملک هیبو ولیدل چه یوسف زی پسته شو ۔ معلوم ئے کړۀ چه یوسف زی ځما د مقابلے توان نۀ لری، نور وروسے لا

زړه‌ور روان شهٔ، د لاشوړے تر رود راپورے وت، په هغه ځائے چه اول یوسف زی ولاړ وو، راغلهٔ وردیدهٔ، لکه یوسفزی نور هم پستنه شو ـ دے لا زړه‌ور کیدهٔ هم هسے ورپسے راتهٔ آخر نورو یوسف زیو سره وویل، چه تر کومه به پستنه کیږو دوئی مو نهٔ پریږدی آخر به راشی په هلکانو به سو لاسونه ولګوی راو ګرزئی توره کوئی ـ

گویند که در آن ایام مردم ترکلانی هنوز در لغمان مانده بودند و مردم مهمند در نواحی کابل و ملک سرخابی بن شمو ترکلانی در آن وقت سردار نامی بود و نزد محمد بابر بادشاه نهایت قریب واعتبار میداشت و ملک گهگر مهمند نیز همچنین سردار و شجاع وقت بو دهر دوی ایشان به واسطه استماع خرخشه با لشکر خود از سوضع خود روانه شده به باجوړ رسیدند، تا مصالحه بین الفریقین کنند ـ چنانچه دوئی دواړه لښکره راغلل ـ دوئی د دواړو طرفو په میان ګرزیدل، صلحه صلاح ئے کوله، اما په خاطر کښے ئے دا وو، چه باجوړ ملک هیبو هم لکه د اکثرو دلزاکو و یوسف زیو و خلیلو ته ورکړے دے هغه هسے د دے هم ورکړ دے د لاړ شی، له اکثرو عزیزانو سره د په دوآبه پریوزی ـ

چنانچه په ظاهر دا طریق نصیحت(ئے) هیبو ته کاوهٔ چه ملکونه خدائے ډیر درکړی دی ـ بد مهٔ خوښوه ـ دا ملک په قراره بے جنګه ورته پریږده ـ اما دا نصیحت د هیبو په خاطر نهٔ راتهٔ ـ دم د آنا و لا غیری ئے واهه، او په خپل خاطر کښے دا رنګه پوهیدهٔ چه ګوندے ملک سرخابی او ګهګر خو مصلحان محض دی، ځمونږ په میان کښے غرض نهٔ کوی نور هیبو له لښکره سره په هیئت عظیم ورپسے راغے، عین په کورونو په زاوزاد (ئے)

راوخوت ـ د غشیو گذارونه (ئے) پرے وکړل ـ

. لکه په هغه وقت کښے د ملک سرخابی او د ملک گهګړ لښکر په یو سنګ د یوسفزیو ولاړ وو، ننګ د عزیزوالی ئے دامن ګیر شهٔ، قهر ورلره ورغے یک جلبه ئے له تمامے خپله لښکره سره پرے را پریښوے، او په یوسف زیو خلیاو ئے هم الله باش وکړ، هغه هم یکبارګی برے راغلل، هسے جنګ (ئے) سره وکړ لکه حق د جنګ وی ـ

ګویند ملک سرخابی او ملک ګهګړ او میر جمال امان زی اول په دلزاکو ګنډے کړے، هم په دا شان نورو سورو، او نظر د واړو په هیبو کښے وو ـ په بل ځائے (ئے) ځان ډیر نهٔ ښلاوۀ ـ آخر ورغله، هیبو او د هیبو ورور جهان شاه دواړه ـ ' پریاستهٔ، هکذا بنهٔ بنهٔ سوارهٔ عمر خیل دلزاک ئے پریستل ـ وائی چه هیبو اول پایندهٔ ترکلانی ککازی په توره وواههٔ، بیا برهان ترکلانی ککازی په ګردن په توره وواههٔ سر ئے پریوت ـ میر جمال امان زے نور زر ورکوز شهٔ، زغره ئے ترے وکښله ـ وائے خسته او توره ئے هم ترے واخسته کور ته ئے راوړله ـ

ګویند که آن زره و شمشیر ملک هیبو نهایت قیمتی بود ـ او هغه زغره لا تر اوسه په یوسف زو کښے د میر جمال اولاد څخه شته دے ـ ډیره نامداره زغره ده په درست یوسف منډړ کښے بلکه په درست خښی کښے مشهوره ده ـ چا دوه سوه روپئی ورکولے، بارے هغو نهٔ ورکوله او ملک ولی بیګ ترکلانی هم ډیر مت تالاش (ئے) ورپسے وکړ، پیرودله (ئے) باوجودے چه دوئ سره خویشان وو، او دوه کاله ورک . . . رته وه پرے کړه

شو، اما د میر جمال اولاد ور نه کړه ترے پستنه ئے واخستله ـ

اوس پروس کال چه سن الف واحد و ثلاثین هجری (۱۰۳۱ ء) وو، هغه زغره د میرجمال له اولاده ملک باؤ علاؤالدین زی سرخیل زاوړے وه پرولله ئے، درے سوه روپئی پرے چا ور کولے بارشے ور ئے نه کړه، بیا ئے یوړه او د میر جمال اولاد په دا وقت په شیر دره دے ـ او هغه شخص چه هغه زغره ورځخه ده ـ هم په شیر دره دے ـ او له امان زیو سره اوسی ـ

القصه چه ملک هینو او وروړ ئے جهان شاه دواړه سره پریوتل ـ نور دلزاک مات شول ـ مخ په جندول روان شو ـ او دوئی ورپسے ووتلول ئے، په دا شان ورپسے تلل د جندول تر رود پورے ئے کړل نور ترے راوجاړوتل توپ مخرنئی ته خپلو مکرنو ته راغلل ـ نور ملک سرخابی او ملک کهکړ یوسف زی و خلیلو بقه وویل چه فتح مو در لره وکړه، باجوړ مو در لره وګاټه ـ لومن دواړه توسنه تاسے سره ئے خوړئی (خوړئی) مونږ درومو، خپلو کورونو لره ـ

آخر ملک سرخابی او ملک کهکړ با لشکر خود روانه شده به خانۀ خود به کابل و لغمان رفتند و دلزاک ما بقیة السیف بجندول ته ورغلل، هورته د استوګے قابو ئے وځله لیده، نور نغانه واز زا وکوچیدل مخ په کنبتۀ زاروان شو ـ بارے یوسفزو خلیلو د لاشورے په لارے نه پریښول، آخر د مهر ډرے په کابنې زا پریواته ځے لاړے راغلل، په عنبر په دانشکول په یو ځائے متره پرے میشته شول، پس له هغه یوسف زیو او خلیلو باجوړ سره تقسیم کړه لاشوره تر هندو راجه پورے او تر چارمنه

تر ناوگئی پورے، سره له توابعو مضافاتو و خلیلو ته ورسیدهٔ او جندول با بقره سره له مضافاتو و یوسف زیو ته ورسیدهٔ ـ دواړه فریقین لارهٔ خپلو ملکونو میشتهٔ شو او هغه نور یوسف زی د دوابے چه پر کوهمک ورغلی وو ـ هغه بیا دوابے لره راغلل ـ

پس له هغه چند گاه با یوسف زی خلیلو سره ښهٔ زیست روزگار وکړ ـ آخر خلیلو بد خوئی آغازه کړهٔ ـ په یوسف زیو بهٔ ډیر بلوسیدل، تعدی به ئے پرے کوله، او منشا د فساد (ئے) دا وه، چه میر جمال ډیر دنیا دار وو، او اسونه ئے ښهٔ لویه گله درلودهٔ، ښهٔ ښهٔ اسونه به ئے له خپلهٔ کوزه پیدا کیدل او پلورل ئے، اتفاقاً پائی بن سالار خلیل باروزے، ملازے، عمرزے چه نامدار سړے وو، له میر جمال ئے څو اسه قرض په مده معلومه وپیرودل، لکه مده د مطلب راغله روپئی خپلے [ئے] ترے غوښتلے ـ پائی مذکور بد معاملگی زا واخستله، امروز فردا به ئے کاوهٔ ـ قیمت د هغو آسونو ئے نهٔ ورکاوهٔ ـ باجود چه قدرت ئے لارهٔ او توانگر وو، بد معا ملگی شیطنت د دهٔ خوئی وو ـ در فتنه انگیزی نظیرے نداشت، هر چند که میر جمال هغه قرض په ملا ہمت غوښت او جرگے معرکے به ئے ورسټولے، هغهٔ حق نهٔ ورکاوهٔ ـ

آخر میر جمال په هره حیلهٔ ستړے شهٔ مایوس شهٔ، کښیناست او دغه شان نورو خلیلو هم بد خوئی، بد معاملگی، دست اندازی پیشه کړه، د یوسف زیو په مال، په کښت به په شپه بلوسیدل، او غوری او غیر اشیائے ترے په بیعه اخستل او قیمت به ئے نهٔ ورکاوهٔ ـ آخر واړه یوسف زی [لکه] میر جمال غونډے له خلیلو په تمان ورسیدل، ډیر تنگ شول، نور د واړو یوسفزیو نیت خلیلو ته بد شهٔ ـ

آخرش یوه ورځ د میر جمال امان زی او د پائی په سبب د هغه قرض دست اندازی وشوه، لاس ئې سره ولګیدل ـ نور په دغه سبب جمع طرفین خلیل او یوسف زی سره ونښتل د لاشوړے او د باجوړے پر برید، د باریکاب د رود په ورسک جنګ ئې سره وشو ـ پر هغه ځائے چه محمد بابر بادشاه باجوړ ته تلو، ګبر کوټ ئې نه حیدر علی ګبری نه چه د ګبریو سردار وو اخستے وو او ګبر ئې قتل کړے وو ـ او د یوه رخه ئې د غره لوئے کمر دے او د بل رخه ئې بابر عظیم خندق کندلے دے ـ چاپیره ترے زوروَر حصار دے او زین خان کوکه د اکبر بادشاه په وخت یوه خامه قلعه هلته اچولی وه چه د یوسف زیو په مهم راغلے وو، نوم د عغے قلعے چار قلعه دے ـ تر اوسه هغه قلعه لا شته، ولے شکسته ریخته شوے ده ـ

نور هغه ځائے یوسف زی ئې مات کړل خلیل ورپسے تلل، د جندول تر رود (ئې) پورے پستل، تر پنجکوړے ورغلل، اما خلیلو احسان وکړ، چه د دوی په زاوزاد په کلیو ئې هیڅ غرض ونه کړ او په دا لارے باندے د جندول او د باجوړے وو لکه چه فتحه خلیلو وکړله نور کونړ ته لاړل او یوسف زی بالکل څه د باجوړ یوسف زی څه د دوائے په دا شکست او په خپلو مړیو چه نامي پکښے مړه وو خجل او منفعل شو نور بیا د باجوړ یوسف زی د لښکر په فکر شو چه یوسف زیو جنګ ورسره کړے بویه ـ یا به باجوړ د دوی شي یا به څمونږ شی دا د شرکت استوګه په مونږ نه شی ـ

آخر خلکان د یوسف زو یاد باجوړ کلی سرمجرګه شو او وینے وئیل چه اول په جرګه په ننواتے ملک هیبو کره، چه له عزیزانو

سره په دانشکول پراته دی وریشو، نور پس له هغه دوابے لره اکثر عزیزانو لره به ورشو آخر په دا صلاح ناصر بن شرغه اکوزی، خواجوزی، علاوالدین زی او مبارک بن پائنده، بولیزی پائنده خیل او الیاس بن دلخک مولیزی ابابکر خیل او الکی بن احمد خواجوزی شامیزی او گدو بن مترک سندړ ماموزی او تاجک بن معروف چه دا واړه نامداران ملکان د یوسف زیو وو په طریق د جرگے معرکے له باجوړه دوابے لره تومن ته راغلل له خپله کل قامه سره جرگه معرکه ئے وکړه حال خپل [ئے] ورته ووایه چه خلیاو بد خصلتی تعدی خپله پیشه کړه په ناحقه ئے لنبکر راباندے وکړ جنگ ئے راسره وکړ ـ وئے وژللو او شرم ئے را پورے کړ او ذا بدی د دوئی نن ورځ نه ده بلکه له قدیمه ده چنانچه له "گارے، له "نشن" راپسے دی او اوس [ئے] باجوړ هم را ځنے لاندے کړ ـ

نور ملک احمد، که سردار کل و خان مستقل بود و شیخ ملی بن پیرکی اکازی مندړ که از مشاهیر وقت و ثانی ملک احمد بود و ملک قره بن بهزاد صدوزی مندړ پدر خیان کجو که از اعیان زمان بود و ملک محمود بن یحیٰی اکوزی خواجوزی علاؤالدین زی و خواجه خضر بن شیخ عثمان بن موتی مولیزی که مقامات عالی وے بالا گذشته است و شیخ منا ابن نیکپی اکوزی خواجوزی که از جملۂ مقتدایان یوسف زی بود وغیرهم علیٰ هذالقیاس که از مشاهیر وقت بود همه به اتفاق تمام گفتند که فی‌الواقع همچنین است ـ

چه خلیل د گارے د نشکی له وقتو را پسے دے، هورے هم فتنه انگیزی تعدی دوی راسره کوله ـ له تمامی ملکه د قندهار خارج مستاصل کړو ـ دلته ترے راغلو دوئی دلته هم را پسے

راغلل، سره له دے هومره بدو د دوئی، موږ بیا دا هومره احسان ورسره وکړ چه نصف باجوړ مو ورته ورکړ ـ او دوئی په دے هومره احسان هم منفعل نهٔ شو بیا ئے خپل ذاتی خوئی واخست، پس صلاح دا ده چه نن وقت دوئی تنها دی ـ مهمند او داؤدزی ورسره نشته لښکر پرے وکړو چه باجوړ ترے واخلو له ملکه ئے بدر کړو ـ

گویند که در ایام داؤدزی و بعضی مهمند که از مقر و قره باغ آمده بودند هنوز در نواحی کابل سکونت میداشتند و بعضی مهمند هنوز در مقر و قره باغ بودند ـ دوئی نور سره صلاح وکړ، چه جلدی شتابی وکړو چه مهمند او داؤدزی په حمایت د دوئی را نهٔ شی ـ نور دوئی زر تهیه د لښکر وکړه په جمعیت تام په هیئت عظیم سره ور روان شو ـ

گویند چه په هغه ایامو کښے یوسف زیو بیا اشنغر اخستے وو تر له حصارے کندے، تر حصار بلوله، تر حصار بیغمی، تر کاټلنگه تر سنگاوو، تر شیرخانئی، تر بازدرے، تر مهورے، تر توتئی، تر کاجکله، تر سیورنی، تر ملکنډه درسته سمه تحت‌الجبل بیا نیولے وه او په زور په جنگونو ئے دا ملکونه نیولی وو ـ ځائے په ځائے پرے میشتهٔ وو ـ او په دغه وقت کښے باشنده د اشنغر شلمانی وو ـ او غیر له اشنغره په دا نورو ملکونو واړه دهگان خاق وو ـ د سلطان پکهل رعیت وو او سلطان پکهل د سوات سلطان وو چه ذکر به ئے په خپل محل کښے راشی ـ

القصهٔ یوسف زی بالکل له وارو شریکانو همسایو سره، چنانچه ړدون او کنبار او اتمان خیل چه په هغه وقت کښے دوئی لا له

یوسف زیو سره شریک مختلط پراته ُوو را تول شول راغلل لښکر ئے وکړ او د پنډیالئی د کرپے په لارے دانشکول ته ورغلل ډیره ُشو، او میر جمال امان زی هم طریق د ننواتے ملک هیبو کره تللی ُوو لا ُهورته وو ـ

گویند میر جمال امان زی چه ملک هیبو کره په طریق د ننواتے ورته، احمد نام زوی او دے، دواړه سره توره کمن پسه غاړه، پټ په شپه ملک هیبو کره ورننوتل کښیناستل چا ُولیدل چه میر جمال ملک هیبو کره ورغے دا خبره ئے په جماعت کښے وکړله جماعتیانو د هیبو کهولی ته سړے واستاوهٔ چه د میر جمال حرمت عزت لن شپه ته ښهٔ وکړه صبا به مونږ په جمع سره ورشو احوال به ئے معلوم کړو ـ

لور په هغه شپه د هیبو قبیلے خدمت د میر جمال په ښهٔ شان سره وکړ، لکه چه صباح شهٔ عمر خیل دلزاک د ملک هیبو د ورونړو له زامنو سره ور روان ُشو ورغلل دار مدار ئے د دهٔ ښهٔ وکړ، نور وپوښتیدهٔ چه چرته په خیر سره راغلی یئی مطلب د څه دے ؟ میر جمال ورته ووئیل چه تقصیر را نه شوے دے تقصیرمند مو یم، دا یم ُتوره کفن درلره راغلے یم، اختیار ستاسے، که مے وژنے اؤ که مے عفوه کوے ـ او پس له دے بل دا طلب دے چه له تاسے سره دا بد خیلاو کړی دی ما نهٔ دی کړی که دوئی نهٔ وے ما به دا هومره بد نهٔ وو کړی، منشا د دے فساد دوئی ُوو اوس ستاسے هم دښمنان دی او ُځما خو له قدیم دښمنان دی، د ګیاړے د نشکي له وقتو را پسے دی بے له یدو راسره نور څه نهٔ کا ـ اوس ګوره څه شان بد ئے راسره وکړ چه ویئے وژلیلم نیست و نابود(ئے) کړلم اوس په ننواتے درته

راغلے یم، لښکر راسره وکړئ چه جنګ ورسره وکړم چه باجوړ به یا ستاسو شي یا به د دوئ شي د شرکت استوګنه مو اوس سره نۀ شي ـ

عمر خیلو ورته ووئیل چه فلانه! لکه تۀ اوس په ننواـ راغللے او مهم د راته راوړ ـ تۀ مونږ ته خپل ئے او لښکر به هم درسره وکړو ـ مهم به د تر سره کړو ـ

الغـرض د یوسف زیو او د میر جمال او د عمر خیلو لښکر سره واړه په دانشکول جمع شۀ ـ صلاح [ئے] سره وکړ چه عمر خیل او د باجوړ یوسف زی د بالکل له میر جمال سره په سمه لار چارمنګ لره ور دروسی چه د خلیلو سرکوب دے و نیسی او د ناوګئی لار هم ساتی چه خلیل د پشت د کونړ به لارے لغمان کابل ته نۀ تښتی او دا عظیم لښکر به مونږ د رښت په غاښی و باجوړ ته ورواړوو ـ

آخرالامر میر جمال له خپلو عزیزانو او له دلزاکو سره د چارمنګ په لارے روان شۀ او د نورو زوری لښکر د رښت په غاښی و باجوړ ته روان شۀ لکه دا لښکر په غاښی ور وخوت کوز د لاشوړے په میدان [ئے] زوری لښکر ولیدۀ نور دوئ ور ګرندی شو ـ

او هغه صورت دا رنګا وو که وقتی که میر جمال به خانۀ ملک هیبو مے رفت برادر اعیانی خود ابابکر نام که اشجع قوم و ـ. نظیر وقت بود گفته بود که شما معه ما بقیه عزیزان ایجانب همیشه از ده خود برآمده قراولی گرد نواح خود می کرده باشید

و حد و حدود خود را نگاه می داشته باشید ـ پس چون که اابابکر مذکور بنا بر گفتهٔ میر جمال مع سواران خود چوکی و قراولی می کردند اتفاقاً در آن روز مردم خلیل نیز آمده به جهت اابابکر در جائے که تربت شیخ اسماعیل بن محمود بمهمند قدس سرّه واقع است مخفی شدند، وقتے که اابابکر در آنجا نزدیک شده خلق د پیخونی پرے ناگاه را پاشیدهٔ ـ اابابکر ئے سره له هغې نورو سوُرو ووژے ـ

و میر جمال بسبب خطرهٔ برادر خود که در وقت رفتن با وے گفته بود ـ در خاطر اندیشید، چه دا واقعه به زما له ورور سره‌وی ـ نور له لنبکره، له احمد خپل زوئی سره وړمبے شهٔ ـ اس ئے پویه کړهٔ او احمد ته یې په لارے ووئیل چه دریغه! اابابکر مو ژوندے ولیدلے، بارے تر هغه ځایه چه در ورسیدهٔ اابابکر ئے مړ پروت وو ـ نور ډیر زهیر شهٔ ـ

آخر دهٔ زوی ته ووئیل چه زر کوز شه د اابابکر ذړه دوه ځایه کړه، نصفی تهٔ واخله او نصفی ما ته راکړه چه سره ئے واخلو کور ته ئے یوسو ـ احمد ورته ووئیل چه دا کار خو له ما نه نشی ـ نور میر جمال قهر غصه ورته وکړه ـ آخر دے بخپله ورکوز شهٔ اابابکر ئے په توره وواههٔ، دونیمه ئے کړهٔ، نیم دهٔ واخست او نیم ئے احمد ته ورکړ ـ نور روان شو، خپل لنبکر ته ورغلل په لنبکر ډیر ماتم شهٔ اما آخر لاړ په لاشوره په هغه مقام چه اوس [پرے] د غازی خان ابن ملک پنی ککیانی موسیزی میشته دے ډیره شوهٔ ـ او خلیل له اوله تبتیدلی وو، د هندوراج په ډیره کینیے سنگر شوی ووـ نور اهل لنبکر میر جمال ته

فاتحه وکړه ـ نور ورته (ئے) ووئیل چه ته له خپلو عزیزانو او له دلزاکو سره د چارمنګه په لارے هندو راج لره وردرومه، د هندوراج سر ورته ونیسه او د هندوراج خلقو ته پیغام وکړه چه لښکر راشی د هندوراج غاښے ورته ونسی، چه ور وا نه وړی اؤ سرکوب ما نیولی دے او له کوزه طرفه لښکر عظیم به پرے راشی چه سره حصار (ئے) کړو او قتل [ئے] کړو ـ چه څمونږ او ستاسے له میان سره ووزی، چه تر غاښیه هغه خوا ملک تاسے ته پاتے شی او دا طرف ملک مونږ ته پا تے شی ـ

آخرش میر جمال لاړ شهٔ د هندوراج سرکوب (ئے) ورته ونیوهٔ او هندوراجی (ئے) هم په دغه طریق سره راوبلل هندو راجی راغلل د هندو راج غاښے (ئے) ورته ونیوهٔ ـ

و مخفی نماند که چارمنګ درهٔ کوه کلان است متصل کوه هندوراج و هندوراج، نام کوه است که درهٔ وسیع دارد و ساکنان آنجائے را هندو راجی می گویند ـ درین وقت که سن الف و ثلث و ثلثین است، طرف جنوبی آن کوه‌مردم اسماعیل زی ترکلانی سکونت میدارند و طرف شمالی آن کوه از قدیم تا الیوم کفار می مانند و جمیع‌ملک آن طرف در تصرف ایشان است ـ

الغرض د هندوراج غاښے هندو راجیو ونیوهٔ او له کوزه طرفه لوئے لښکر پرے راغے، وقتے که لشکر کلان به مقابلهٔ دو میل نزدیک سنګر دره رسیدند، لشکر خلیل نیز به استعداد و جمعیت تمام از سنګر خود بر آمده در فضائے که در این وقت پرے د ملک یار حسین ابن پیر ترکلانی اوریازی قبیله میشتهٔ ده، سره

مقابله شو، جنگ عظیمئے مره و کړ ـ طرفین دریغ و نهٔ کړ، شکست هیچا و نهٔ کړ ـ اما په دغه میان کښے هندو راجی او میر جمال ورمتو پر سنګر راغلل، دوئی ته خبر په عین جنګ کښے چا راورساوهٔ، دوئی نور دو دله شو مخ په سنګر مات شو بعضے په جنګ ځائے کښے وسړل او بعضے په ماتے کښے وسړل او اکثر په سنګر کښے په زاوزاد وسړل او سنګر غارت شهٔ ـ اطفال عیال بند شو ـ

ګویند چه هومره قدر بند شوی وو، چه بعضے زلمیو یوسفزیو سندیان په سمالی لوښی خرڅاوهٔ ـ چنانچه دا طعنه یوسفزی خلیلو ته تر اوسه کاندی، او په هغه ځائے چه خلیل سنګر شوی وو تر اوسه پورے هغه ځائے ته سنګر ډزه وائی او هر چه خلاص شو مخ پر ناوګئی وتښتیدهٔ او لښکر په دغه ځائے شپه کړه چه صباح شهٔ نور ملک احمد او نیره اعیانو د یوسف زیو سره معرکه شو، بند د خلیلو آزاد کړ هر چا څخه چه وو پریښهٔ او بعضے بعضے خلقو ځنے ترے وشړاوهٔ پټ ئے کړ، نور له هغه ځایهٔ خوښ خورم فتح مند راغلل دوابے لره ـ

ګویند که قبل ازین در ایامی که یوسف زی از کابل آمده در دوآبه مستقر ګشتند بعد از چند ګاه ارادهٔ ګرفتن ملک اشنغر بنا بر ایماے الوس دلزاک درپیش کردند، چنانچه درآنوقت حاکم اشنغر میر هندا نام بن ارزو قوم دهګان خصوصاً از قبیلهٔ دودال بود و سردار نامی و اشجع آن وقت بود و آن طرف سلطان اویس که سلطان سوات بود در حصار اشنغر مے باشید ـ چنانچه بیان وے بذ ضمن سلاطین سوات در محل خود خواهد آمد و از ملک سوات

تا شیرخانئی و بازدره و برمول و سنگاوؤ و حصار بلول و حصار بیغم و اشنغر در تحت تصرف او بود، ساکنان این جمیع محالات مذکوره رعیّت سلطان اویس بودند ـ

و در آن وقت در ملک اشنغر قوم شلمانی سکونت میداشتند و حصار اشنغر در آن وقت قلعهٔ سنگین و محکم بود ، برپشتهٔ بلند، در مقامے که مسکن قدیم اولین ملک فتح خان بن ملک سعید خان بن ملک خضر خان محمد زی بارک زی اشنغری بود که آنرا حصار اشنغر می گفتند ـ و الحال ن از مدت شکسته و ریخته است ـ

القصه هر گاه چه یوسف زیو قصد د ملک گیرئ د اشنغر وکړ، نور ئے څه قدر ژوی د یوسف نامے په طریق د دهاړے اشنغر ته پورپاسته، چه د شلمانیو مال مویشی زاولی لکه چه هغه دهاړه ورپورے وتله، مویشی د شلمانیو (ئے) له صحرا ونیول را په مخه ئے کړل میر هندا او شلمانی خبر شو ورپسے راغلل مال (ئے) ترے خلاص کړ، دوئی خالی دست دواپے ته راغلل نور مندړ نامے پرے ملامت وکړ چه په دا هومره عمر کښے بے مونږه دا گذار تاسے تللی وئ ـ هسے خالی راغلئ هیڅ مو و نهٔ کړل ـ

لکه چه صباح شهٔ، مندړو ورته بنه تیاری وکړه، اکثر سورلنی کم پلی ور پورے وتل ـ سورو ورته پیچونی وکړ او پیاده ورغلل مویشی د شلمانو ونیوهٔ، را وئے خستله، لکه شلمانی او میر هندا بیا خبر شو ـ په زور تام په جمعیت تمام ورپسے راغلل، جنگ ئے سرهٔ وامبیلهٔ، له دغه شان منره راتلل چه تر پیچونی راغلل، هلته نور پیچونی پرے ژا پاڅیدل ـ لوړ د لوره پرے راغلل او په دغه

میان کنبے یوسف نامه هم ورپسے راورسیده، جنگ ئے سره ونښلاوه. آخر میرهندا او شلمانی [ئے] مات کړل وا(ئے)خستل او دوئی ورپسے وو، تر هغے پورے چه په حصار ترے ننوتل، دروازے [ئے] بندے کړے او دوئی ترے چاپیره شو قلعه ئے محاصره کړله۔

گویند هر گاه چه یوسفزیو نیت و اشنغر تـه بد کړ، هر چرے چه شلمانی په اشنغر کنبے وو واړه را ټول شوی، دوئی له ځانه له ماله سره په حصار ننوتلی وو۔

الحاصل یوسف زی د حصار او د جیندی سیند تر میان ورته پریوتل، اوبهٔ ئے پرے بندے کړلے، درے څلور ورځے په دا شان سره دننه محاصره وو۔ نور نهایت عاجز مضطر لاچار شو، پیغام [ئے] ملک احمد ته وکړ چه مونږ خدا ئے وشرمولو، اوس عاجز شولو، اوس لار راکړه او دا هومره قدر امان راکړه چه هر قدر مال چه مونږ له ځانه سره اخستے شو هغه واخلو نور ووزو۔

ملک احمد اوغیره اعیانو التماس د دوئی قبول کړ، امان [ئے] ورکړ، بعد ازان جمیع شلمانی ومیر هندا با فوج خود معهٔ مال برداشتنی وقت شب از حصار بر آمده متوجه حصار بلول شدند و مابقیه مال و اموال را همگی فرو گذاشتند۔ چنانچه تمامی شب رفته علی‌الصباح به حصار بلول رسیدند که قلعهٔ سنگین و محکم بود، در آن متحصن شدند و علی‌الصباح آن مردم یوسف زی به حصار در آمده تمامی مال و اموال را غارت نمودند و جمیع ملک اشنغر را در تحتِ تصرفِ خود در آوردند۔

او له هره تومنه او له هره خیله ئے څه قدر خلق په حسب

د رسد له دوابے را پورے یست، په اشنغر ئے واچاوۀ، نور بیا میرهندا پسے روان شو۔ هر ګاه چه میر هندا له راتلو د دوئی خبر شۀ له حصار بلوله خارج شۀ مخ په وړاندے وتښتیدۀ په حصار بیغم ننووت ۔ لکه یوسف زی له حصار بلوله هم وروستے ور تیر شو له حصار بیغم هم فراری شۀ شیر خانی لره لاړ شۀ ۔

و مخفی نماند که حصار بلول و حصار بیغم هر دو قلعۀ مختصر و سنګین اند که در زمین کالا پانړی واقع اند، اما حصار بیغم در بلندی واقع است و خوبتر از قلعۀ حصار بلول است و آن هر دو مشهور اعیان اند اما الحال شکست و ریخته است و درمیان هر دو حصارین تخمیناً یک فرسخ* راه خواهد بود ۔

الغرض یوسف زی په دا طریق درجه په درجه ملک ګیری کوله وروستے تلل او میرهندا ئے له مخه فراری کیدۀ، تا به حدے چه کوز په سم هیڅوک دهګان پاتے نۀ شو، واړه د مهورے په غاښی ورواؤړیدل سوات ته لاړل او د میر هندا کور په تهانړه وو او قبیله د دۀ قوم دودال هم واړه په تهانړه اوسیدل، دے هم تهانړے ته لاړ شۀ او تهانړه په سوات کښے یو کلے دے څرګند او مشهور ۔

نور یوسف زی ترے راؤګرزیدۀ، راغلل تحت الجبل دا جمیع ملکونه واړه له حصارے کندے، د اشنغر تر حصار باوله، تر حصار بیغم، تر شیر خانے، تر کاټلنګه، تر سنګاؤو، تر باز درے، تر مهورے،

---

*یو فرسخ درے میله درے فرلانګه او شپیتۀ ګزه وی (۱۸۰۰۰ فټه)

پورے دا ملکونه ئے واړه له دهګانو خالی کړل په خپل تصرف (ئے) راؤړل ـ

و هیچ کس منازع و سهیم خود را در این ملک نه گذاشتند و بعد ازان به اشنغر آمده به ملک ستانے ملک سوات متوجه شدند، و به آلات حربی و تهیهٔ جنګ مشغول گشتند، اما اتفاقاً در آن میان مابین یوسف زی و اهلِ دلزاک پشاور مخالفتے واقع شده از سهم سوات باز آمدند و آن این چنین بود ـ

چه د پښاور دلزاکو غل غدوی به په شپه په ورځ راپورے وتل د یوسف زیو په گرد و نواح به گرزیدل زیان نقصان به ئے ډیر ور رساوهٔ، او چه ملک احمد اوغیره اعیانو د یوسفزو به ورته له دے بابه استغاثه وکړله، دوئی به ور نهٔ کهٔ ورته (به ئے) وئیل چه موئږ د الوس د بدو روادار نهٔ یو او له غل غدوئی ځان ساتئی ـ

پس لکه د دلزاکو دهاړه غل غدوئی به همیشه راپوریوتل، دوئی نور لاچار شو ـ آخر ملک احمد و خپل تومن ته ووئیل چه تاسے هم ځوک یوه شپه ورپورے شئی د دلزاکو څه مال مویشی پټ راولئی شاید چه په دا سبب څه حذر وکا ـ له بدو دست بردار شی، نور یوه شپه د یوسف زیو غلهٔ ورپورے وتل ورغلل د ملک محمد خان دلزاک ـ چه په هغه وقت کښے د دلزاکو نامی سردار وو خاصه د سورلئی بناغلے آس ئے پریکړ رائے وست. شیخ ملی اکازی مندړ لره ئے ورکړ ـ

لکه چه دلزاک په دے چارے خبر شو نهایت دا چار ئے

گرانه شوه یک لخته یوسف زیو ته په بدو ودریدهٔ، شب و روز به راپورے وتل ایذا به ئے ور رسوله، او شیخ ملی به همیشه د محمد خان په هغه آس سوریدهٔ په شپه به تهٔ، له څو سورو پیادهٔ سره قراولی به ئے کوله، د خپل گرد و نواح محافظت به ئے کوهٔ - او د میچنئے گدر به ئے درسته شپه، کښته، پورته ساتهٔ، چه مبادا دلزاک راپورے ووزی، نقصان راروسوی -

اتفاقاً یوه شپه چوهړا بن کیمل او ځنے دلزاک که شجاع وقت بود، جمیع سوار و پیاده به طریق دهاړه بالائے بر بروتنگی په هغه برابر چه د علی زیارت دے پټ ورپورے وتل - اکثر د سیند په غاړه په غرهٔ کښے د تنگی و گودر ته قریب پټ کښیناستل، او بعضے خلق د یوسف زیو کلیو ته نزدے ورغلل، هالهٔ هغه ملک ځنکل د بنوئه وو - هورته پټ کښیناستل، منتظر د مویشی وو - چه رائشی، نور به ئے بیایو، او شیخ ملی، هغه شپه بنا بر عادت معروف با قدر سوار و پیاده د میچنئی له گذره ډیر کوز په هغه مقام چه د حاجی محمد د شیخ عباس د پلار قبر دے هورته د سیند په غاړه ولاړ -

او هغه بل طرف د سیند په کناره د دلزاکو کلے وو چه د یوسف زیو خورلنړه په کښے واده وه او هغهٔ له دے تاړاکه د دلزاکو خبره وه چه یوسف زیو ته پوریوتلی وه، نور ښځه په سبب د نیکخواهی د خپل قام راغلـله د سیند پـه غاړے په زوره آواز وکړ په رموز په کنایت سره، چه اے سورو زهٔ ستاسے خورلنړه یم ځما د غاړے منړے غلو در وړے، هر چرے دغورے منړه ده واړه په کښے ده خبردار شی - او مراد له دغه قوله

دا وو چه  دهاړه د دلزاکو در پورے وتلی ده، هرچرے چه د
کار مور دے، واړه په کښے دی خبردار شئی، لکه چه شیخ ملی
د دے ښځے نعره واوریدله، هغه ښځه نے وپیژندله او په رموز
هم پوهه شۀ، چه دهاړه د دلزاکو راپوربوتلی ده ـ

# جنګ دلزاک و یوسفزی

نور شیخ ملی فی‌الفور سړی کلیو ته واستول، خپل خلق ئے خبر کړ، نور واړه خلق راووت، تر څانبته پورے واړه راغلل جمع شول، لکه د کلیوشے له هر طرفه راتللے هغو د کلی څنګ (ته) دلزاک ولیدل را وائے خستل او د کښته له طرفه شیخ ملی هم په پورته د سیند په غاړه پره آچولی وه، واړه سره راغلل د پیچونی په برابر سره جمع شول او دلزاک هم واړه سره راغلل د پیچونی له دلزاکو سره په غرۀ کښے په یو ځائے شو، نور یوسف زیو پیاده له پاسه طرف پرے راغلل او سوارۀ ئے له کوزه طرفه پیاده شو ور وختل، نور سره جنګ د غشیو [ئے] ونښلاۀ، دلزاک خو په غشیو سړی وو بارے یوسف زی کانی تیرانداز وو سره تیرباران [ئے] د میچنی د غرۀ په خوا کښے شروع کړ۔ جنګ ئے واميلۀ ۔

او پورته د سیند پورے په غاړه د دلزاکو کلی هم وو او د ملک محمد خان دلزاک کلے هم پورته د سیند په غاړه وو، نور ملک محمد خان ورغے د بربر د غرۀ په ورسک، مقابل د میچنی د کزز کیناست او هر چه کاری او د جنګ سړی وو هغه واړه ئے په شنازونو په دست بازو وروپورے کړل، او هرچه زاړۀ ضعیف سړی وو هغه واړه له دۀ سره پورته کښیناستل تماشے کولے، او هغه جنګ ځائے له هغه ځایه نمایان وو طرفینو هیڅ کمے ونۀ کړ، تاحدے چه په تورو سره ورغلل اسا شکست هیچا ونۀ کړ، او هر څوک چه به له جانبینو وسړ یا به زخمی

شۀ له هغه ځایه به ئے بیرته کړ اما شکست هیڅا ونۀ کړ *

تا وقتے چه بیګاه شۀ تیارۀ شوه، نور جانبینو سره آواز وکړ چه، آفرین د جانبینو په مردانګئی او په همت شه - اوس په سخ کښیے شپه راغله طرفین سره سټ شو اوس صلاح دا ده چه سره پسته شو او خپل خپل مقتولان زخمیان واخلو - آخر نور صلاح په دا مقرره شوله چه یو جانب به کوروڼو ته دروهو، اوبل جانب به خپل سړی دلته خښوو - بلۀ ورځ به بیا هغه بل جانب راشو خپل مقتولان به خښ کړو، نور په دا اقرار سره اول یوسفزیو خپل سړی واخستل کوروڼو ته لاړل او دلزاک هورته پاتے شول شپه ئے کړله - چه صبا شۀ خپل مقتولان [ئے] واخیستل سخ په قطب د کړوهی د ګبریو د غابی لاندے به هموار مزکه ے دفن کړل، نور کوروڼو ته لاړل، په هغه ورځ یا په بله ورځ نور مسلسل یوسف زی راغلل خپل سړی (ئے) متصل د دلزاکو له مقبرے سره په مفاصله د پنځو شپیو ګزو ئے دفن کړل، چنانچه مابین د دواړو مقبرو د کړیے لارده اؤ د باجوړ لارهم دغه ځائے د یوسفزو له مقبرے جدا شوے ده، او د ګبریولار هم له دغه ځایه جدا شوی ده، چنانچه غرباً د لارے د دلزاکو مقبره ده او شرقاً د لارے د یوسف زو مقبره دۀ و آن زمین خاک سفید و سنګریزۀ سفید بسیار دارد، چنانچه بالائے قبور نیز سنګریزهائے سفید پاشیده است و از جائے دور سفید می نمایند بنا برآن، دراین وقت آن مقام را سپین خاک، میګویند و بر سکنۀ آن نواحی آن مقام پوشیده و مخفی نسیت مشهور وعیان است -

---

* دا فقره لکه چه ے ځاید تکرار شوے وی -

## گرد آمدن دلزاک به جنگ یوسف زی

القصه دلزاک هر چرته (چه) وُو دا چار پرے هر گوره گرانه شوله، نور دلزاکو گرداوری د لښکر وکړله، عظیم لښکر (ئے) سره جمع کړ، روان شول د میچنئ دتنګی په ګزر په برېر ډیره شو۔ او په هغه وقت کښے د یوسفزیو چندان کثرت او استعداد نهٔ وو، ولے چه تازه له پاسه راغلی وُو او د میرزا الغ بیګ حوادثو وعلی شکسته حال وُو۔ اما په هر طریق لښکر خپل ګرد وکړ راغلل د میچنئ په ګزر مقابل د برېر د لښکر ډیره شول۔ پورے را پورے دواړه لښکر سره محاذی مقابل وُو اما یوسفزی ډیر په ویره وُو، ولے چه د یوسفزیو لښکر په نسبت د دلزاکو د لښکر قدرے قلیل وو، نور ملک احمد و خپل قام ته ووئیل چه :

اے عزیزانو دلزاک ډیر لوئے تومن دے په دا ملکو نو هرچرته دوئ پراته دی چنانچه په پښاور، په ننګرهار، په تیراه، په کالهپانړی تر پیهوره چه په کناره د اباسیند ده او په چچ هزاره او په کرلغ هزاره که آن طرف آب سیند است ایشان سکونت میدارند او سونړ په دا ملک کښے سړبنی خو دا څو کَی بوچه هغه هم دوئ راکړی دی، ګردا ګرد راته دوئ پراته دی او نور څوک سړبنی په دا ملک نشته، چنانچه ګګیانی او مهمندزی په کابل پاتے شوی دی او ترکلانی په لغمان او غوریه خیل په ستر او قره باغ پاتے شوی دی، پس څمونږ توان طاقت د دوئ سره د جنګ نشته پس صلاح دا وینم چه زهٔ په ننواتے ملک محمد خان له ورشم شاید چه دا تقصیر څمونږ معاف کا او لښکر خپل خور کا، نور واړو یوسف زیو د دهٔ دا صلاح خوښه کړله ۔

## رفتن ملک احمد به خانهٔ ملک محمد خان دلزاک به جهت صلح دلزاک ـ

القصه ملکِ احمد له یو څو پیادهؤ سره روان شهٔ، کوز له لښکره لاړهٔ، د میچنئی په دوئم ګـذر چه منتهی د غـرهٔ وو، هورته پورے شهٔ، ور روان شهٔ ـ ګویند چه وقت د غرسے وو چه ملک محمد خان دلزاک کره ورغے، ورننوت کښیناست او پسه دغه وقت کښے ملک محمد خان کورنهٔ وو، پـه لښکر وو، بارے قبیله د محمد خان ډیره ځوان مړده عاقله وه، دے [ئے] وپوښتیدهٔ چه څوک یئے چرته راغلے ئے؟ دهٔ ورتـه ووئیل، ملک احمد یوسفزے یم، ملک محمد خان ته په ننواتے راغلے یم، نور هغے د دهٔ ښـهٔ دار مدار عزت حرمت وکړ، نورئے خپل سړے اعتباری پټ محمد خان ته واستاوهٔ، د ملک احمد له راتلو ئے خبر کړ، چه په ننواتے راغلے دے او هغه سړے هم دے ښهٔ پوهه کړ، چه ګوره خبردار شه، د ملک محمد خان او د نورو الوس کل مرضی دریافت کړه نور راشه، احوال ماته بیا ووایه ـ

لکه هغه سړے لاړشهٔ مخفی ئے محمد خان له دے حاله خبر کړ، محمد خان نور خپل د کور واړه عزیزان راوبلل لـه دے حاله ئے خبر کړل ـ مشورت ئے سره وکړ، آخرش هغه خبره تر هر چا ورسیدله، ځرګنده شوله، درست لښکر پرے خبر شهٔ، لـکه په جنګـ کښے د هـر هـر چا وروڼره عزیزان مړهٔ وو، هر چا سره ووئیل چـه ملک احمد خدائے راکـړ د پرېښوو نهٔ دے، نـور درست لښکر په زوری، په جوش خروش، په قهر په غصه د ملکِ احمد په مرګـ را وکوچیدل د محمد خان کلی ته روان شول ـ

او ملک محمد خان او د دهٔ د کور عزیزان د ملک احمد په بدو روادار نهٔ ؤو، دلزا کو ته ئے وویل چه دا مناسب نهٔ دی، په کور د نواتے خاق چا وژلی نهٔ دی ـ په دا کښے بدنامی ده ـ دا کار د کړو نهٔ دے، هر چند چه ډیر نصیحت محمد خان ورته وکړ- بارے فائده (ئے) ونهٔ کړله، درست لښکر د محمد خان کلی ته روان شهٔ اؤ محمد خان هم ورسره وو ـ گویند چه د ملک محمد خان عورتے چه اول هغه خپل سړے استولے وو- ورته ئے ویلے ؤو چه هرشان چه د محمد خان او د لښکر احوال د ؤلیدهٔ، نور راشه ماته ووایه- هغه سړے قبل له لښکره راؤرسیدهٔ دا احوال ئے ورته بالکل ووایهٔ ـ چه لښکر درست د ملک احمد په وژلو روان شهٔ ـ د ملک محمد خان خبره هیځوک نهٔ منی، نور قبیلے د محمد خان، به ملک احمد آمده ظاهر نمود که "تمامی لښکر برائے کشتن شما روانه شد، می آیند و ملک محمد خان هر چند که مخالفت و نصیحت می کند، فائده ندارو، او زور د الوس بد دے، راشه په تاه خانه کښے چه مسا مزکه دننه کندلی ده او بارونه د رخت سے په کښے پراتهٔ دی، تهٔ ورننوځه د هغو بارونو د لاندے پټ شه، ځان ساتل فرض دی"ـ ملک احمد ورته ؤوئیل "هر چه تهٔ مناسب گنړے ښه خبره ده"ـ نور ملک احمد ورننوت ـ هورته د بارونو د لاندے پټ شهٔ، او دغه فکر د محمد خان قبیلے له او له کړے وو ـ دغه ځائے ورته د بارونو د لاندے کندلے وو- نورو خپلو رازدارو سړیو ته ئے ؤوئیل چه کوځه په کوځه وگرزئ نعرے و کانړئ، چه ملک احمد وتښتیدهٔ لاړشهٔ ـ هغه سړیو هم دغه رنګ په حکم د دے، ځائے په ځائے په کلی کښے نعرے وکړے چه ملک احمد وتښتیدهٔ لاړشهٔ، هر چرته دا خبره عامه شوه ـ

هر کله چه لښکر د دلزاکو راغے، له فراره د ملک احمد خبر شئ له موندلو ئے مایوس شۀ، ډیر زهیر شۀ، - ګوېند، هر چه دانا او عاقل خلق وو، هغوئی * ډیر پرتاب او افسوس کا وۀ چه هر کله تومنونه سره بد وکاندی، بارے چه داسے مرونه غولی ته په ننواتی ورشی، هغه بدی تر میانه وبامی - او د ننواتے مرونه په عزت په آبرو له غولی پاڅوی او مونږ ګوره څه رنګه بے عقلی وکړله، چه ملک احمد غوندے سردار میړۀ راکره په ننواتے راغلے وو، مونږ قبول نۀ کړ، راځخه بے عزته لاړ شۀ، په وګړی په تومنونو بدنام شو - پس له دے به څوک اعتبار راباندے ونۀ کا -

او په محمد خان به ئے هم دا رنګه ملامت کاوۀ، چه حیف دے چه د ملک احمد غوندے میړۀ ورکره په ننواتی درغلے وو - هیڅ شرم ئے د خپل غولی ونۀ کړ، ملک احمد بے آبرویه ورځخه لاړشۀ، او د محمد خان قبیلے به هم په‌خپل میړۀ دغه رنګے ملامت کاوۀ چه د کار نۀ وے، دغولی شرم او پت د ونۀ کړ - او د محمد خان عزیزانو هم دغه رنګ ځان ته توکل، چه څه رنګ چار وشوه، په تومتونو رسوا شو و شرمیدلو -

هر کاد چه د محمد خان قبیلے ولیدۀ، چه دلزاک پشیمان شو و خپل څښتن ته ئے پت وویل، چه که تۀ ملک احمد د دلزاکو له وژلو ساتلے شے او ننواتے به ئے قبلولے شی، زۀ به ملک احمد پیدا کړم، محمد خان ورته وویل چه دا خو هرګوره ډیره ښه خبره ده - که ملک احمد پیدا کولے شے - مونږ خو دا

---

* په اصل کښے "هغه" دے -

ساعت له خدایه غواړو، چه که احمد پیدا شي چه په عزت حرمت سره ئے رخصت کړو، چه د هرچا آبرو سره په ځائے پاتے شي- او دلزاک هم بالکل اوس واړه پښیمان دی- هر څوک دا ارمان سره کاندی چه دریغه احمد مو په آبرو سره رخصت کړے وے- پس که تهٔ ئے پیدا کولے شے هیڅ خطره ئے نشته په عزت په حرمت سره به ئے رخصت کړو چه شرم آبرو د هرچا سره په ځائے پاتے شي-

نور قبیلے ئے ووئیل چه ملک احمد هیچرته نهٔ دے تلے، په دروغه ما آوازه ګډه کړے وه چه احمد وتښتیدهٔ او احمد هغه دے دننه تر بارونو د لاندے په تاه خانه کښے دے- چه ځائے مے ورته هورته جوړ کړے ساز کړے پټ مے په کښے کښینولے دے- نور دا ورغلهٔ بارونه ئے لیرے کړل احمد [ئے] راویوست، نور ملک احمد راغے له محمد خان سره ملاق شهٔ محمد خان ډیر خوښ شهٔ دار مدار دلاسه استمالت ئے د دهٔ ډیر وکړو-

نور پس له هغه ئے خپل د کور عزیزان راوبلل له دے حاله ئے خبر کړل- هغه هم راغلل له ملک احمد سره ئے ولیدل ډیر پسرِ خوشحال شو- پس له هغه ملک محمد خان درست لښکر چه لا هورته وو خبر کړ، هرڅوک ازکه و مه په دا خبره خوشحال شو راغلل، د لاسه د ملک احمد [ئے] وکړله اوله ډیرے خوشحالئي ډمامے او نغارے ئے وو هلے، دارئے ودراؤ، آخرش ملک احمد و دوئی ته ووئیل چه "اے دلزاکوا تاسے نهایت زبردست زوروړ الولس یاستئ او مونږ لږ خاق سره یئ، دلته راغلی په تاسے پورے پراتهٔ یو، نور قام مو دلته نشته دا ګذار زمونږ ګناهٔ معاف کانړئ چه ګوره زهٔ تر خپل سره

تیر شوم په دا هسې وقت په ننواتې غولی ته درته راغلـلم، دا لښکـر خـور کاندی او پس لـه دے غـرض د بـدئ راباندے مه کوئ ـ

نور دلزاکو ورته ُووئیل چه ملک احمدا لکه ته راغللے ستا په مخ مو ستا قام عفوه کړ - بارے خپل تومن پوهه کړه چه بیا دا هسې بدی ُونه کاندی، نورئ صلح مصالحه سره وکړله او په قسمونو غلیظوئ سره محکمه کړله، نور سرو پائ او یو ښۀ آس ُمسُرّجـه ملّجّم [ئ] و ملک احمد ته ورکړ، په اعزاز تمام ئ رخصت کړ ـ

ګوئیند چه په هغه وقت چـه دلزاک د محمد خان په غولی جرګه ُوو ډماسے [ئ] وهلے، او د ملک احمد پـه باب [ئ] مشورت کاوۀ، پیرکے نام مطربے قدیمی دلزاک نیز درآنوقت حاضر بود، کسے از وے استفسار نمود، چه پیرکیه! تۀ هم څه په دے باب کښې ُووایه ـ پیرکی ورتـه ُووئیل چـه که زۀ څه ُووایم تاسې به راته قهر غصه وکانړئ ـ نور هرڅوک چه هوښیار خلق ُوو او د دۀ په شیطنت او په فتنه انګیزئ پوهیدل هغو ورته ُووئیل چه څه خو ُووایه آخر پیرکی په زوره ورته ُووئیل چه:

"اے دلزاکو احمد خدائےدرکـړے دے د پرینښولو نـۀدے ـ
او که مو پرینښو آخر ستاسې د واړو میندے به وګوتوی ـ"

نـور وزغاښت وتښتیدۀ ـ اکثرو خلقو ورپسے ُغنـدے ُوغورزولے، ښکنځلے [ئ] ورته وکړے، خو دے ُوتښتیدۀ لاړشۀ ـ

القصه ملک احمد ئے په اعزازِ تمام سره رخصت کړ، او دوئي لښکر هم نور خور کړ، پس له هغه ملک احمد راغے خپل لښکر ته، نور درست لښکر دو آبے ته راغے۔ هر څوک سره خوشحال ُشو، ملک احمد ته ئے مبارک بادي وکړله، ورته ئے ُووئيل چه شکرالحمد الله چه خدائے ته په خيريت سره راوستلے او مونږ لـه شره د دلزاکو خلاص شولو۔ ملک احمد ورته ُووئيل چه پس له دے غرض په د لازاکو مه کوئي و سوات ته متوجهٔ شئي که سوات مو واخست هاله به مونږ له مغلو له دلزاکو خلاص ُشو۔

ګوئيند چه په دغه ميان کښے چا ملک احمد ته ُووئيل چه ملکه! دلزاک د څرنګه خلق ُوليد۔ دهٔ ورته ُووئيل چه "هيڅ عالم نهٔ دے، او ډير ناپوهه خلق دي چه زهٔ ئے پريښولم مګر په کښے ميرهٔ، يو پيرکے ډم دے چه په زوره ئے دلزاکو تـه ُووئيل چه احمد ژوندے مه پريږدئي، که مو پريښو ستاسے مينده به وګوټوی۔ بارے د دهٔ خبره چا ُونه منله،، ۔

# مقام سیوم

## در بیان متوجه شدن یوسف زی به ملک سوات و آمدن محمد بابر بادشاه به تسخیر مردم یوسف زی۔

گویند چه دا د سوات د آخستو خبره د ملک احمد او شیخ ملی او ملک قره او محمود بن یحیی اکوزی علاؤ الدین زی او غیره اعیانو د یوسف زیو سره پسنده کړله نور په دا نیت سره فاتحه ولوستله او له خپلو مشائخو ځ د هغه وقت دعا وغوښتله، هر څوک سره په تاپیا (تعبیه) د لښکر شو او اسباب د حرب ئ تیار کړ، نور روان شو۔ او هر چرته چه په سمه د یوسفزیو کلی وو مهورے ترغاښي پورے، لکه چه اول مذکور شوے دے واړه سره جمع شو۔

گویند چه په هغه وقت زیات یوسفزی د بگیاړے د رود په غاړه میشته وو، او نور هرچرته خوراه وو او په دا ملکونو ځکه میشته شوی و۔ چه له دے به سوات زر په لاس راشی۔

گویند چه د یوسفزیو میشته چه ترمهورے ورغلله، په سلطان اویس د سوات، دا چار هرگوره بده ولگیدله، زهیر او خائف شه، او خپلو امیرانو سردارنو ته ئ ووئیل چه "د یوسفزیو قرب جوار ښه نه دے، دوئ د سوات زوال دی۔ او غرض ددوئ هم نه دے نژدیکته د سوات اخستل دی۔ ددے چارے فکر بویه"۔ نورامیرانو ورته ووئیل چه "راشه دا خپله قبیله چه، د ملک احمد خور ده وځ وژنه، چه د یوسفزیو آمد و رفت له دے ځایه قطعه شی چه له حاله مونږ خبریږی، چه دا مو جوړه جا سوسه ده" نور سلطان اویس

ظالم په صلاح د امیرانو هغه خپله قبیله په ناحقه په چاړو ووهله وے وژلله په منګلور کښے (ئے) دفن کړله۔

ګویند چه هغه ډیره عفیفه صالحه ښځه وه۔ لکه دا خبره ملک احمد او واړو یوسف زیو واوریده، دا تعدی ناحق د سلطان اویس پرے ډیره بده ولګیدله، اما لکه ملک احمد ډیر صاحب عقل دانا وو۔ تحمل (ئے) وکړ۔ سل غوایه (ئے) سلطان ته واستول او تعزیت (ئے) هم ورستاؤ۔ ورته ئے ووئیل چه "دا حکم الٰهیﷻ وو چاره ترے نهٔ وه، که ځما په خوښئ په نسبت د خوښئ ده بله خوښی به درسره وکړم۔ او که د حکم وی زهٔ به دغه ځائے هم فاتحے له په ځپله درشم*" سلطان د ملک احمدد سړی په خوله پیغام ورته وکړ چه "هرچه تقدیر وو هغه وشهٔ۔ او که ستا رضا دلته په راتلو ده راشه" پس له هغه، ملک احمد لهٔ یو شلو کسو سره په تعزیت د خور له بګیاړے ووت، منګلور ته روان شهٔ۔

او منګلور شهریست در سوات کلان، که قلعه رفیع و منیع دارد و تختګاه سلاطین جهانګیر است۔ چنانچه د واړو سلطانانو او د بعضے امیرانو جهانګیریهؤ محلونه قصرونه عجیبه رنګینه دننه په قلعه کښ وو او ګردا ګرد شهر پروت وو لوئے لوئے بازارونه وو په هغه وقت چه یوسفزیو سوات لاندے کړ، هغه شهر ئے وران کړ، اما قلعه او قصرونه او محلونه ئے چه پخته او سنګین وو تا حال قائم او برقرار دی۔

---

* په اصل کښے دا فقره داسے پکار وه۔ "که د خوښه وی زهٔ به دغه ځائے ته هم فاتحے له درشم"۔

مخفی نماند که قلعهٔ منگلور برسر سوات، طرف مشرق در دامنه کوه مابین نهرین * واقع است او دغه دواړه نهره مخ په وړاندے دوه کروهه د سوات پرسیند ګډیږی۔ و پوشیده نماند که سلاطین جهانګیریه اولاد سلطان جهانګیر اند که ایشان منسوب بدو اند و نیز مخفی نماند که قبیلهٔ سلطان اویس که به ناحق شهید ساخت، خواهر حقیقی ملک احمد بود، و وجه‌نسبت او باسلطان اویس محضاً آن بود که وقتے که مردم یوسفزی از کابل خوار و زار به دوآبه آمده از بسے پریشان حالی آمدورفت سوات می کردند او مالکے انډیری به ئے له خوارئی و سوات ته وړل، په غله‌به ئے بدلول اوقات ګذاری به ئے پرے خپله کوله، د یوسف زیو اکثر روزګار له سوات وو آمد و رفت [ئے] و سوات ته ډیر کاوهٔ، نور سلطان او د ملک احمد سره آشنائی غائبانه پیدا شوه او سلطان خبرشهٔ چه د ملک احمد خور شته ده۔ نورئے آرزو د دهٔ د خور وکړله ، لکه چه دے هغه وقت کښے سلطان د سوات وو او ملک احمد او قام د دهٔ په هغه وقت کښے (د) سوات محتاج وُو۔ نورئے خور ور وادهٔ کړله۔ سلطان خپل معتمدان خلق په وقت د عروسی ورستول له دوابے ئے دا بوړله۔

دیگر مخفی نماند که در وقتے که مردم یوسفزی ملک سم را در تحت تصرف خود آورده جابه‌جا آباد شدند سلطان اویس از قربت جوار ایشان بسیار خائف شده دانست که همچنیں درجه به درجه مردم یوسفزی پیش رفت کرقه آمده به ملک سوات‌متصرف خواهند شد، ازین اندیشه در تدبیر محافظت ملک سوات ورفع ایشان میکوشیدند ۔

* دا دوه خوړونه‌دی چه یوته "اوږد خوړ" او بل ته "لنډخوړ" وائی۔

چناڅه میر هندهٔ مذکور چه امیر نامی د دهٔ وو، د مهورے په غاښی تانه* کړی وه او شاه اویس او فرخ زاد چه دا دواړه ئے هم نامدار امیران ُوو ۔ او په ذات دهګان سواتی ُوو د ملکهند په شاښی کښے تا نه کړی وه ۔

لکه چه سلطان د ملک احمد د راتلو خبر شهٔ، از منګلور برآمده به موضع تانړه آمد و عادت سلاطین سوات همچنین بود که هر ګاه چه مهم بـه پیښ شهٔ له منګلوره به راغلل تانړے لره، هلته به ئے ارکان اعیان خپل راوبلل جرګه مشورت به ئے سره وکړ، بنا برآن، آن موضع را درآن وقت 'اتن جائے' می ګفتند و 'اتن' به زبان ګبری جرګے ته وائی یعنی د جرګے ځائے۔

در آن وقت سلاطین سوات وغیره مردم جهانګیریه زبان ګبری می ګفتند و رعایائے سوات زبان یادری می ګفتند و درآن وقت اہل سوات به همین دو زبان تکلم می کردند۔

و تهانه در ملک سوات موضعی است مشهور به‌مفاصلهٔ نیم روزه راه از منګلور، او همیشه زورهوره قصبه پرے میشتهٔ وه، چناڅه اوس په دے وقت کښے هم پرے بابوزی اکوزی پراتهٔ دی۔

الحاصل ملک احمد چه تهانړے لره نژدے ورغے۔ سلطان آدمان خود را به استقبال ملک احمد فرستاده حکم کرده که ملک احمد را در موضع دیگر که متصل تهانړه باشد جائے دهند آدمان

---

* تانه ۔ څوکئی۔ تانړه۔ (په وړاندے څونو کښے " تانړه " لیک‌دے)

سلطان بنابر امر وے به دو، سه تیر پرتاب در جائے که در این وقت آنرا د بختی ډیرئی * گویند - دیره دادند، و چون بختی نام پسر میرجان شاه صدوزئی که در اوائل وقت در آن مقام ساکن بود موضع مذکور بنام‌وے موسوم شد - و چون در آنجا قدرے پشته و بلندی نیز هست آن موضع از آن وقت تا الیوم د بختئی دیرئی گویند ودر این عصر بالائے آن پشته مسجدے ** واقع است -

الغرض هرگاه چه ملک احمد هورته دیره شۀ، د سلطان سړے ورغے، ملک احمد (رح) له یوۀ خدمتګار سره طلب کړ - ملک احمد ورغے ملازمت د سلطان [ئے] وکړ، فاتحه ئے ورته وکړله - نور بیا ډیرئی ته راغے - صباح (ئې) بیا وبالۀ، ملک احمد لا هورته وو چه میرهندا د ملک احمد دیرے لره ورغے، د ملک احمد خلق ورته پاځیدۀ، تعظیم تکریم (ئې) د دۀ وکړ، بارے دے هر

---

* دا وړوکے شان کلے چه بخته یا بخته ګړئی ورته وائی اوس موجود دے - په ۱۲۷۵ ھ کښې لیکلی شوی د میاں عبدالحق دیو قلمی فارسی دیوان نه دا معلومیږی چه په دغه ورځو کښې به ئے دے ځائے ته "بخته‌قلع" وے - میاں عبدالحق صاحب دیوان د دغے "بختے قلعه" اوسیدنکے وو - پخوا به ئے دے ته "بختی ډیرئی" وے -

** دا تاریخی جماعت لا ترننه پـه خسته بوسیده حالت کښې موجود دے - (۱۹۷۰ء)

ګوره په قهر په غصه ناست وو له خپلو خلقو سره ئے خبرے کولے په دا میان کښے څه ګفتګوئی شۀ * ـ

میر هندا د ملک احمد خلقو ته ووئیل "چه مونږ اوریدلی دی چه تاسے یوسفزی د سوات نیولو په خیال کښے یاستئی دا هسے میړۀ هم څوک په تاسو کښے شته دے چه څما مخے ته به راشی" د ملک احمد خلقو د ملک احمد لهملا حظلے هیچا ** جواب ورنۀ کړ ـ بارے دے هم دغسے په لاڤوشاڤو ولګیدۀ، په بار بار بهئے دغه هسے رنګ خبرے کولے ـ درنګ په د رنګ به پورته خوت ـ هر چند که یوسفزیو له دغے خبرے به انکار کاؤه د دۀ تعریف به ئے کاؤه بارے دے نه سړیدۀ لاپه پورته خوت ـ

نور آخر کریمداد بن عثمان یوسف زے چه بنۀ سړےمیړۀ وو ونۀ سهیدۀ ورته ئے ووئیل چه "میړۀ مونږ د سوات خیال په زړۀ کښے نۀ لرو او لکه تۀ چه وائے که یوسف زے خدائے دلته راوست، ناکاره کمیند د یوسف زیو زۀ یم، زۀ به په هغه وقت بیا ستا مخے لره درشم" نور رفیقانو په کریمداد قهر غصه وکړه چه تۀ خاموش شه ـ دے هرڅه چه وائی ود وائی، نور میرهندا په غصه شۀ بکنځل (ئے) ورته وکړل چه ګوجره سپیه، تۀ به څما مخے لره راشے" او د میرهندا نوکران هم لور د لوره پرے راغلل بارے بیا میر هندا منع کړل ـ چه سلطان به بد ومنی ـ

---

* په دا میان کښے څه ګفتګو ئے سره اوشوه ـ

** هیڅ جواب ـ

نور په دغه میان کښې د ملک احمد وخلقو ته دسلطان له طرفه مهمانی راغلله، هغو خدمتګارو له ادبه راوړله د میرمندا د وړاندې (ئې) کیښوله، دهٔ لاس ورته کړ، یو څو لقمې (ئې) واخستلې، نور حکم (ئې) وکړ چه دا وریژے واخلئی تو ئې (ئې) کانړئی، نور هغو هغه وریژے واړولې په غولی کښې، نور پاڅیدهٔ لاړشهٔ۔ پس له هغه د ملک احمد خلق ور پاڅیدهٔ هغه وریژے (ئې) په لمنو کښې تولې کړے وئے خوړلې ۔ او دا کار (ئې) په نیک فالئی ونیوهٔ، چه دوئی کبر وکړ، د سوات وریژے ئې وغورزولې او مونږ تولې کړلې۔ انشاء الله سوات له دویه لاړشهٔ ولې چه دوئی خپله کاسه پخپله واړوله ۔

دوئی په دا ګفتګوئی کښې وُو۔ هغه وریژے (ئې) لاخوړلې چه ملک احمد له سلطانه کورته رخصت شوے وو دیرے ته راغے ۔ پوښتنې (ئې) ترے وکړے چه دا څه دی۔ دوئی ورته حقیقت ماجره ووئله، ملک احمد ورته ووئیل چه حقیقت د دوئی راته ښهٔ ښکاره شهٔ۔ دروسئی چه اوس کورته درومو، خدائے به * راکه، نور له هغه ځایه را روان شو کورته راغلل ۔

پس له هغه ئے نور مشیران ملکان جمع کړهٔ ورته ئے ووئیل چه د سلطان او د سوات د لارو حقیقت راته معلوم شهٔ خدائے به ئے راکه، ګرد آوری د لښکر کوئی چه سوات ته خیژو۔ هیڅ معطلی په کار نهٔ ده۔ نور دا مصلحت هر چا سر خوښ شهٔ۔ فاتحه ئے وکړله۔ نور ئے لښکر له دوآبے تر مهورے پورے واړه راوباله۔

---

* سوات ۔

د مهورے ترغرۀ لانـدے ديره شو او د مهورے په غابنی د میر هندا تانړه هم ناسته وه، او د ملکنډ په غابنی د شاه ویس او د فرخ زاد هم تانړه ناسته وه، دا درے واړه لوئے امیران ُوو نور څو ګذاره یوسفزیو د مهورے په غابنی هله وکړله بارے لکه څو کئی محکمه او غابنے سخت ناهموار او لوړ وو بدے ګاټئی وے* برے(ئے) پرے ُونه کړ نور دوه میاشتے کم و بیش دغه ځائے سنګر پراتۀ وُو آخر له دغے لارے ناامیده ُشو د ملکنډ په غابنی (ئے) جاسوسان وګر ُزول، آخر جاسوسانو ورته خبر راوړ چه هغه عالم غافل بے خبره دی ـ او لار هم شته دے ـ آخستل ئے آسان دی ـ

نور ملک احمد او شیخ ملی او ملک قره حکم وکړ چـه وړمبئی شړمه د ملکنډ په غابنی خیژئی، بارے څه قدر خلق دلته په دیرو هم پریږدئی، چه ځانے په ځائے په دیرو کښے اورونه بلوی چه دا د مهوړے څو کئی هسے پوهیږی چه لښکر دلته دیره دے ـ

نور هم په دغه طریق بعضے خلق په دیره پاتے شۀ اورونه ئے بلول او نور لښکر وکوچیدۀ ـ درسته شپه لاړ شۀ د سحر په وقت د ملکنډ په غابنی ُولـګیدۀ ـ شاه ویس او تانړه ئے غافله په خوب اوده وه ـ دوئی ور وختل څو کئی ئے قتله کړله او شاه ویس او فرخزاد دواړه ترے وتښتیدل تانړے لره لاړل او میر هندا هم چه خبر شۀ چه یوسفزی دملکنډ په غابنی را واوړیدل له هغه ځایه وتښتیدۀ تانړے ته کورته راغے د تانړے په تینګول شۀ ـ

---

* د هندی لغت "گهاتی" په جمع صیغه کښے راوړے شوے دے په دغه مناسبت "ګاټئی" د دوو غرونو مینځ کښے تیرے شوے سختے لارے ته وائی ـ

او یوسفزی چه د ملکنډ له غاښی ور واوړیدل دوه کروهه وړاندے لاړل په ډاګ باندے دیره ـُشو چه هغه ځائے ته په سبب د ډیرو کایو ښهر * هم وائی او هغه ځائے هموار میدان دے او سیند بهیږی ـ

لکه سلطان او رعایا د سوات خبر ـُشو نهایت په هراس کښیے ـُشو وئے ویل چه بلا په سوات راننوتله دفعیه ئے اوس مشکله شوه ـ پس له هغه سلطان معهٔ جمیع امیران و رعایا آمده به موضع تانړه دیره شدند و تانړه از موضع شهر که نبشکر یوسف زی در آنجا بود تخیمناً سه میل** باشد و شهر مقامی خوشی هوا و هموار است وسیوم حصهٔ سوات تعلق با وے دارد ـ

وګویند چه هر ګاه یوسفزی له غاښی ورواوړیدل د غاښی په ویخ کښیے لوز 'ملکوت' نام یوه سنګینه قلعه وه که اهل چوکی را درآن ذخیره و توشه می بود و برائے خوردن و پختن در آنجا آمد و رفت می کردند آنرا غارت نمودند و مال و اموال بسیار از آنجا به دست آوردند پس له هغه همدغه هسے ورپسے تلل د سواتیو د کلی دغه ځائے چه ډیر په هر طرف پراتهٔ وو هغه ئے ووهل او غارت(ئے) کړل او په دغه شان نور کلی ئے هم تاخت و تاراج کول او هر څوک چه به راتلل اطاعت به ئے قبلاوهٔ امن به ئے ورکاوهٔ ـ

ګویند چه یوسف زی چه ښهر لاندے کړ، دریمه بخره د سوات په تصرف راغے نور یوسف زی ورپسے په کډو راتلل ځائے

* د ډاګ ښار په نوم دا کلی اوس هم آباد دی ـ
** دا فاصله نهه (۹) میله ده ـ

په ځائے په دریمه بخره سوات میشتیدل او رعایا د سوات خلقو ته ء
دلاسه ورکوله واړه زاتلل بخپلو مواضعوله دوئی سره آبادیدل ـ
په دا شان سره په هر کلی کښے به یو څو کوره یوسفزی ګوو
نور به ورسره سواتی اوسیدل ـ او هغه وقت د پسرلی وو یوسفزیو
فصلونه، کښتونه، زراعتونه، د سواتیو خوړول، اسونه ئے څربوّل او
لښکر ئے درست په الله ډنډ او په شینکرکلی ورته پراتهٔ وو او
سلطان هم تهیه د جنګ ورته کوله په تانړه کښے نامست وو
لکه چه آسونه یوسفزیو تازه کړل، نور په عزم د جنګ د تانړے
ګوکو چیدل قریب ورغلل له هغه طرفه سلطان هم له جمعیته سره
راووت په مفاصله د نیم کروه له تانړے راغے، دواړه لښکره
سره هورته مقابله ګشو جنګ ئے سره وکړ ـ د سلطان لښکر ئے
مات کر او یوسفزی ورپسے ګوو له تانړے څلور کروهه مخ په
مشرق وړاندے ووهل تر سیند په پایاب پورے شهٔ و ترهنګ
ته خسته شکسته ورغے او په دالارے ډیر قتل شهٔ ـ مال ئے غارت شهٔ،
نور یوسفزی ترے له ترهنګه راؤګرزیدل ـ را غلل په‌تانړه ګشو ـ

ګویند چه په دے جنګ کښے چه سلطان شکست وکړ،
لښکرئے فراری شهٔ او لښکر د یوسفزیو ورپسے ګوو له ډیره هیبته
سلطان لارغلته (غلطه) کړله راپورے له لانړاکیه چه مقابل د
ترهنګ کلے دے، له لښکره جدا شهٔ په ترهنګ ورغے له هغه
بوی ګلئی په غابنی ورغے له هغه په دمغار ورغے له هغه و
منګلور ته ورغے ـ

او سلطان چه له لانړا کیه غلت(غلط) شهٔ، ګریزان پریشان مخ
په قطب را پورے تر سیند سراسیمه سر شهٔ د ملک حسن متراوی

په آلکه ورننوت او ملک حسن متراوی د دهٔ دښمن وو او ملک ئې علیحده وو، او له سلطان سره همیش مخالف وو۔ نور سلطان وویریدهٔ چه له هغې بلا راخلاص شوم په بله بلا کښیوتلم۔

او معلوم د وی چه متراوی په سواتیو کښې یو لوئې تومن دے په اصالت په شجاعت تر سواتیو ځان بهتر ګڼړی او مؤرخان انساب د متراویو، دا رنګ وائی چه مونږ په ذات یوسف زی یو، اما آمدن مایان درینجا بدین سبب شده که قدماء مایان از قوم یوسفزی از حدود قندهار از موضع ګاړی و نشکی به یکے حادثه از حادثات جدا شده آمده در اینجا متوطن شدند و مایان از اولاد او شائیم۔

القصه سلطان له خپلې ویرے چه څوک متراوی راباندے پیښ نهٔ شی مړ به سے که۔ نور لارئے پریښوله د غرهٔ په بنی طرف په یوتنګی سر شهٔ۔ که آنرا بت بټ میګویند و از عهد کفار در آنجا بتان بسیار بودند وقتے که غلبهٔ یوسفزئی در آنجا شده آنها را بشکست و آن مقام از موضع انبوه یک میل دور است۔ پس څو چه سورتللے شهٔ هومره سور لاړ۔ هر ګاه چه د آس د تللو امکان ورک شهٔ نور هورته کوز شهٔ۔ آس او وسله او نموداری جامے (ئې) هورته پریښوے، نور پیاده پاس په تنګی وخوت روان شهٔ۔ خواروزار کوفته مانده په دریمه ورځ کورته ورغے۔ د کور عالمو ئې بیا ماتم کړے وو۔ درئیمه ئې ورپسے پخه کړی وه۔ چه شاید چرته ومړ۔ په ورتلهٔ ئې ډیر خوشحال شو۔

ګویند چه په دے جنګ کښې د سلطان عزیزان او امیران ډیر ومړهٔ چنانچه از آنجمله شاه‌ویس او فرخ زاد او میر سنجو

سواتی وغیره ذالک چه څرګند مشهور امیران وُو با رعایائے سکنۀ سوات ارذال و اشراف بے شمار وسړل ـ

بلکه میګویند که سوا از میرهندا امیر دیګر نماند واین جنګ را جنګ تانړه میګویند ـ

ونیز مخفی نماند ـ که وقتے که سلطان از لشکر خود جدا شده سراسیمه مـی ګـرېخت، چند سواران یوسفزئی ویرا دیده در تعاقب وے رفتند ـ اما نمیدانند که این سلطان است ـ چون چندے راه رفتند ـ واړو ُولیدل چه په سمه لار کښې یو رویمال پروت وو چه په هغه رویمال کښې دوه ښاغلی د سرو زرو حلقے وے چه سلطان بخپله له غوږو ُوکښلے وے او په هغه رویمال کښې (ئے) غوټه کړے وے غورزولے (ئے) وے ـ له دے ویرے چه څوک ے ُولئه پیژنی چه سلطان دے مړ یے به کا ـ نور هغه سوارهٔ کوز ُشو، هغه رویمال (ئے) را واخست، ہرائے نت په کښې د سرو زرو دوه حلقے وے، تر هغه میانه بیا سلطان لرے وتلے وو او په تکښېږ د متراویو کای وُو، نور هغه سوارهٔ پسته راو ګرزیدل خپل اښکر لره را غلل ـ

ګویند چه د واړو سلطانانو د سوات، دا دستور وو چه هر څوک چه به سلطان وُو دوه حلقےبه ئے د سرو زرو په غوږ کښې ہرتے وے ـ او د بل چا دا قدرت نهٔ ووچه د سرو زرو حلقے ئے په غوږ کولے ـ دا خاصه خو یوازے د سلطان وه او نورو نامدارو به حلقے د سپینو زرو په غوږ کولے ـ و در ابتدائے وقت چون یوسفزئی به سوات در آمدند نیز بنابر دستور ایشان د سرو زرو حلقے په غوږ کولے ـ اما د کشمیریانو په دوډ

ورژلے منقشے به وے۔ خصوصاً په مندنړو کښے، زياتی بهزاد خيلو صدوزيو په غوږ کولے او په يوسف نامه زياتی آکوزی خصوصاً اما خيلو موليزيو به په غوږ کولے۔

او بل مخفي مه شه چه په دغه جنګ کښے چه صفوف جانبين سره ورغلل کريمداد ابن عثمان الياس زی ايازی چه مذکور سابق تير شوے دے چه مير هندا ته ئے ويلی وُو، په هغه وقت چه له ملک احمد سره په فاتحه ورغلے وو، چه زمونږ او ستاسے سره چرے د لښکر مقابله وُشوه ستا مخے لره به زهٔ درشم۔ لکه چه ميرهندائے د سلطان په صف کښے وليد نور په فارسئ (ئے) ورته نعره کړه، که "اے مير هندا! اگر مرد هستی و خيال جنګ داری بيا که من حاضرم"، و در آن وقت مردم يوسف زی از کابل تازه آمد بودند۔ فارسی خوب می گفتند پس چون ميرهندا آواز کريمداد بشنيدله خپلو ژويو ورته ورپيل شهٔ ورغے، په فارسئ جانبين سره هت وکړ۔ هر يو به ويل چه اول ته گذار کوه۔ بل به وے چه اول تهٔ گذار کوه۔ آخرش دواړو سره دوه دوه گذاره د نيزو وکړل۔ بارے دواړه طرفه زغره پوش وُو هيڅوک زخمی نهٔ شهٔ۔

گويند چه ميرهندا په زغره د پاسه د گله آغوستے وه، چه کريمداد به دنيزے گذار پرے وکړ د قباپمبه به ئے واخسته اما نور کار به ئے پرے نهٔ کاوهٔ۔ په دا ميان کښے دواړه لښکره هم سره ولګيدهٔ۔ خوچه دوه دوه گذاره لښکر سره وکړل۔ د سلطان لښکر مات شهٔ۔ ميرهندا نور وتښتيدهٔ کريمداد آواز پرے وکړهٔ "که اے ميرهندا! مگريز۔ گريختن مردان مناسب نيست۔ تو لافها

زده بودی" اما میرهندا قیام نه می نمود - و می گریخت، او کریمداد یوکروۀ دغه هسې ورپسې وو گذارونه ئې پرې کول - هیڅ اثر پرې نۀ کاوۀ آخرش کریمداد د نیزې څوکه د دۀ د زغرې په گریبان ور ننه ایستله - هر چند چه زورئې کاوۀ میرهندا نۀ پریوت ولې چه آس ئې ښۀ آس وو او دې هم قوی الهیکل وو او کریمداد حقیر وو آس ئې هم تازه خوبد خوړلې او زورئې هومره نۀ وو- په دا شان سره تلل، چه له هموارې زمکې ووتل سیند ته نژدې شو- هغه ځائې قلب وو نور میرهندا و خپل پیاده ته چه هفت منی نام مغل وو، وئې ویل چه هفت منیه! دې سوارۀ نه نۀ خلاصیږم وله ئې - هغه غشې پرې راکیښ په برښنه ځائې هسې ځائې کښې وویشت چه له آسه پریوت په هغه ځائې ومړ او هغه نیزه د کریمداد د میرهندا په زغره کښې نښتې پاتې شوه چه وړاندې لاړ شۀ هاله ئې وکښله او یوسف زی هسې څرګند سړی یې کریمداد په دغه جنګ کښې بل څوک ونه مړ -

القصه یوسفزیو په دغه جنګ سره دوه بخرې د سوات په تصرف کښې راغې لکه هرچاته معلومه شوه چۀ د یوسفزیو ورځ په ورځ ترقی ده او د سلطان ورځ په ورځ تنزل دې - اوبل داهم چه یوسفزی هالۀ ډیر خوش خویه نیک معاش خلق وو، نور لور د لوره خلق راتۀ، د دوئی په هغه دوه بخرې ملک میشتۀ کیدل - او یوسفزی هم دغه هسې په هر کلی څو څو کوره ورسره پراتۀ وو -

او هغه مابقیه دریمه بخره سوات چه سلطان او ملک حسن متراوی څخه وو هغه دا ده چه دسویګلی له غاښی په پورته ترخزریه تر منګلوره پورې ملک د سلطان وو او د شاه میلې له

غاښي تر لاندېکيه تر مهورے چه دا آبي او ښۀ ملک وو د ملک حسن متراوي وو ـ او د يوسفزيو لښکر درست په ښهر او په تاناړه او پۀ چکدره او په راموړه ورته پروت وو ـ هميشه د سلطان په مابقيه کليوئے داړے کولے، د بند د قتل صرفه ئے هيڅ ړے نۀ کوله کلي ئے سول خرابول او د متراويو په ملک ئے اصلاً غرض نه کاوۀ، غرض ئے دا وو چه د سلطان ملک مسخر کړو پس له هغه به دۀ ته متوجه ُشو دوطرفه دست اندازي په کار نۀ ده ـ

القصه پس له چند ګاهه د يوسفزيو لښکر و منګلورته روان شۀ چه له دمغاره تير شۀ د حسين ډيرئ په لاز ورغلل ـ هلته سره معرکه ُشو يوسف نامے ووئيل چه يارانو د منګلور سخته سنګينه قلعه ده ـ لار تنګه ده او سلطان په ځان پکښے دے ـ لښکر پکښے زور دے ـ آخستل ئے مشکل دی هسے ځان به پرے نښلوو هيڅ بهٔ ئے ُونۀ کړو خو صلاح داده چه هورته لۀ ځو خو يو سر بل سر کلي به ړ دوئ ووهو خود به آخر تنګ شي مندنړو دا خبره نۀ آوريده د منګلور په تللو باعث وُو ـ

آخر مندنړ تر سيند پورے وتل ـ وائي چه اکثر پيل او مت و منګ ړر ته د الکي بن بهزاد مندنړ صدوزي وو چه د ملک قره مکه ورور وو او نامدار ځر ګند مړنے سور وو، آخر مندنړ يوازے ور روان ُشو په منګلور ورغلل شهر بيرون د منګلور لوټ کړ، قتل کړ، اسرات وکړ ـ سلطان مطلقاً لـه قلعے بيرون ونـۀ وت ـ دروازے (ئے) محکمے کړے وے ـ دننه ناست وو ـ او په قلعه باندے قابو د چالۀ کيدۀ ـ نور لښکر درست فيروز مند شۀ، هم په هغه ورځ له هغه ځايه راوګرزيدۀ دمغارته راغے، هورته ديره شۀ، شو ورځے ئے

هورته دیره وه، کشران هوسناکان ځلمی په طریق د شکار به مدام تلل او گرد نواح کلی د سلطان به ئې وهل، پس له هغه از انجا کوچیده به تانړه مراجعت نمودند او د سلطان له طرفه نور د یوسفزیو هیڅ خطره پاتے نشوه۔

گویند چه په هغه نژدے ایامو کښے اختر راغے اکثر ژوی بهر ووتل تماشے (ئې) کولے او سورو دړے وهلے نیزه بازۍ (ئې) کولے ناگاه په دا میان کښے بعضے هوسناکان په طریق د شکار او د داړے بے پوښتنے بے صلاحه د مشرانو تالاش ته لاړل او تالاش له تانړے مخ پر قطب شمال اور کروهه دے۔ دسوات ترسیند پورے دے۔ او د پنج کوړے له سینده دوه کروهه را هیسته دے۔ د دواړو سیندونو د دواړو غرونو تر میان دے۔ دیر ښهٔ غله بود ملک دے او د کفارو د وقته قلعه ئې د غرهٔ په سر ده۔ د انارو باغونه ئې د وړاندے دی۔ او ښکته د تالاش په هغه وقت کښے دهگان کافران وُو اوپه شجاعت سره مشهور وُو، اشراف اعیان په قلعه کښے اوسیدل او رعایائے واړه کوز اوسیدل۔

المقصود دغه د یوسفزیو داړه پړے وُلگیدله مواشی د تالا شیو را واخستله دوړاندے ئې کړله بعضے سوارهٔ ئې وریسے کړل لاړل او کار چیله سوارهٔ ورته دُنبال شو آخرش د تالا شیو هپے وریسے لور د لوره راغللے۔ جنګ ئې له سورو سره کاوهٔ او وړاندے د کاتکلے وتنګی ته مت کاوهٔ اود کاتکلے تنګے هغه دے چه د تالاش د دواړو غرونو سر سره لګیدلے دے۔ نهایته سخته تنګه لار ده او غرض دا وو چه دغه ځائے به ورته ونسو، مال به ترے خلاص کړو۔ اما چه دوئی هغے تنګی ته ورتلل سورو هغه

مواشی له هغه ځایه بیا تیر کړی ُوو دوئی را غلل تنګے ئے ورته ونیو -

ګویند چه تالاشی د کاټکلے په میدان چه را غلل او دیوسف زیو له سورو سره ئے جنګ کاوه چه له هغه مقامه راتیر شوُ .هورته یو رباط دے، کوټے او منازل واړه پخته د خښتو دی او بنائے سابقه ده، هورته یو بلند کمر دے او دلاندے ترے عمیق ُوچ خوړ دے - هلته یو تالاشی پیاده په محمود بن شاهان یوسفزی اکوزی بائیزی ابازی پسے را ورسید لاس ئے ور واچاوهٔ محمود ترپالل له آسه کوز شهٔ، سره تر غاړه وتل دواړه پریوتل کوز وخوړ ته - سره ورغښتل - هلته محمود خدائے پرے د پاسه کړ، چاړهٔ ئے وکښله، په ګیډه ئے ووههٔ، مړئے کړ او د سپینو زرو دوه حلقے ئے په غوږ وے، ترے ُو (ئے) کښلے، وائے خستلے۔ نور پاس بیا راوخوت، په آس سور شهٔ پخپلو سورو پسے راغے لکه چه بیا واړه سوارهٔ په تنګی راغلل هغه تنګے تالاشیو بیا نیولے وو نور ئے سره ُووئیل چه یارانو حصار ُشو مړدی کوئی وتت د مړدئی دے- نور اکثر سوارهٔ پورته وختل د غرهٔ پخوا ورته را غلل او بعضے سوارهٔ په سمه لار په تنګی را غـلـل - نور واړو یک لخته پرے وخیژولے تالاشی(ئے) ډیر ووژلل اوجامے او وسلے (ئے) ترے واخستلے، صحیح او سلامت لـه تنګی نه را ووتل خپل لښکر ته را غلل -

ګویند که مزید بن ملک قره بن بهزاد صدوزی مندړ بردار حقیقی خان کجو که در شجاعت بینظیر و نهایت صاحب جمال بود پـه یـو لوئے عراق مشکی آس سور وو ، پـه دغه وقت کښے

د قطب له رُخه د غرۀ په خوا کښې په یوۀ تالاشی را ولاړه کړه۔ هغه تالاشی ترے بنکتۀ و تنگی ته توپلل۔ بل طرف ته هغه تنګی د پاسه زر وخوت قصد ئے د تیښتے وو۔ لکه مزید چه هغه تالاشے ولید چه پورته کمرته خوت، هلته ئے آس ورپسے پوننده کړ، آس ئے هسے لوئے توپ او غورزنګ وکړ۔ چه پورے غاړه تر تنګی دواړه وړمبئ پښے (ئے) په کمر ولګیدلے ونښتلے او هغه تالاشے (ئے) په هغه توپ کښے د کمر په غاړه په سورلئ هسے په نیزه ووهۀ چه نیزه ترے پورے را پورے وختله۔ په هغه میان کښے اسماعیل بهزادخیل چه د مزید تریب عزیز وو ورپسے راغے، هغه تالاشی(ئے) په ټوره وواهۀ، مړے ئے کړ، او مزید پس له کناره د نیزے چه خپل آس ولید چه د کمر په پیچوسی هلواک ولاړ دے۔ نور (ئے) زرله آسه تر پلل کوز شۀ۔ پورته وخوت، آس ئے تر واکو وینوۀ پورته ئے را څکاوۀ هله بیا پرے سور شۀ پخپلو سورو پسے لاړو۔

جائے که در تنګی کاتکله اسپ مزید ترپ کرده و جسته به ګز اکبری نهد ګزاست او پورے را پورے په هغه ځائے دواړه طرفه د کاڼرو ځلی دی تراوسه په هغه مقام ځلیعیان او نمایان دی او هغه مقام ته تراوسه ګوړترپ وائی۔

الحاصل هغه داړه په فتح په ظفر تاڼرے ته راغلله، مال مویشی (ئے) ډیر راوستله، ملک احمد پرے ډیر خوښ شۀ نور پس له هغه چه خطره ئے هیڅ له سلطانه اوله متراویۀ پاتے نۀ شوله لینکرئے رخصت کړ هر څوک سره کوروڼو ته خپل ځائے ته لاړل او د تالاشیو قابو هم نور د استوګے هورته ورک شۀ۔ نور له تالاشه

دروبست لاړل د پنجکوړے پر درو کښے نتوتل ـ هغه ځائے ترے خالی پاتے شۀ ـ پس له هغه چه یوسفزیو درست سوات لاندے کړ تالاش (ئے) هم لاندے کړ ـ پرے متوطن شو ـ

و مخفی نماند که درآن وقت که میرزا الغ بیگ ظلم و حیف بر مردم یوسفزی بسیار آورده جلاوطن ساختند. الله تعالئے په دۀهم عذاب کیښو په دواړو ورونوئے بیړه وختله، په ډیرو عذابونو په ډیرو سختیو ومړ، و بعد از چند گاه حضرت ظهیرالدین محمد بابر بادشاه انارالله برهانهٔ بادشاه شده از کابل تا لغمان و جلال‌آباد و ننگرهار و پشاور و دوابه و اشنغر و نیلاب همه ممالک را در تحت تصرف خود آوردند و مردم یوسفزی نیز مطیع و فرمانبردار او شدند پس در وقتے که یوسفزی به دو حصه سوات متصرف شدند به ملک سم مراجعت نمودند و به خانها ئے خود آمدند ـ

---

## طلبیدن محمد بابر بادشاه ملک احمد را و رفتن وے

فرمان محمد بابر بادشاه به جهت طلب
ملک احمد از کابل‌آمده ملک احمد به موجب
حکم بادشاه روانهٔ کابل گشت ـ

گویند چه یوسفزیو پیشکشی بادشاه ته تولہ کړله و ملک احمد تهٔ ور کړله او ملک محمود بن یحیی اکوزی علاؤالدین زی که درآن وقت ملکے نامی بود او یو څو کسه کشران نور د یوسفزیو ورسره روان شو له سمے ووتل پاس و سوات ته لاړل، په هغه لارے نور روان شو ـ سلطان شهی ته ورغلل، ملک مبارک ابن پائندہ اکوزی مولیزی کره میلمانهٔ شو ـ او هورته څلور ورونړه ډماں وو ـ د خوشداد مطرب زامن وو ـ اول سرکین نام دویم درویش دریم آدو، څلورم جونا په هغه شپه ادو او جونا دواړو سره د ملک احمد بنهٔ خدمت وکړ او درسته شپه ئے ورته سرود وکړ او آدو ډیر خوش آوازه بنائسته وو ملک احمد پرے مئین شهٔ چه صبا شهٔ ـ ملک احمد سرکین ته وویل ، چه دے په کښیے مشر وو چه آدو له ما سره کړه چه دا سفر له ما سره وکا که بیا خدائے زهٔ په خیر سره راوستلم ډیر بنهٔ به درسره وکړم ـ نور سرکین آدو له ملک احمد سره کړ، له هغه ځایه په هغه صباح ووتل، براه تنگی کاتگلهٔو تالاش روانه شده به گذر تری از دریائے پنجکوړه عبور نموده به باجوړ رسیدند درآنجا چند روز در خانهٔ یوسف زئی باجوړ استقامت کرده بعدهٔ از آنجا روانه شده براه ناوگئی به کابل رفتند و ملازمت بادشاه حاصل کردند و به مراحم ظاهری ممتاز گشتند اما در باطن خیلے متعرض بود ـ

په دا سبب چه ملکان د دلزا کو د ننګرهارو د پشاور د کالا پانړی چه خاصه رعیت د بادشاه وو بادشاه ته ئې استغاثه د یوسف زیو کړے وه چه ملک هیبو دلزاک د باجوړ په جنګ کښے وژلے وو، او چوهړ بن کیمل دلزاک او څنے نور نامدار دلزاک (ئې) د میچنی په جنګ کښے وژلی ؤو۔ اکثر ملکونه ئےتړے آخستی ؤو او په مخ کښےهم د دوئی له ترقی ئے ویریدل چه دا نور ملکونه به راڅخه ضبط کاندے۔ نور شب و روز (ئې) چوغلی بادشاه ته کوله او امیرانو وکیلانو ته ئې د بادشاه رشوتونه ورکول چه ملک احمد سر کانړی۔

ګویند چه دلزاکو اویا زره روپئی بادشاه ته په دا شرط قبول کړی وے چه ملک احمد ورژنه او په وقت د مرګ (ئې) خبرو ته مه پریږده۔ ولے چه دوئی پوهیدهٔ چه ملک احمد خوش تقریره جوړ طوطی دے، په خبرو به ځان له بادشاه خلاص کا۔ او بادشاه هم ملک احمد په دا غرض بللے وو۔ او په هغه وقت کښے ګګیانی او سیمنابزی لا په کابل اوسیدل او ترکلانی په لغمان اوسیدل او ملکان د وارو بادشاه څخه حاضر ؤو او ترکلانی د ملک احمد خپل او خیر خواه ؤو، چنانچه په هغه وقت چه بادشاه ملک احمد ته فرمان استاوهٔ ملک سرخابی او ملک بلوخان ترکلانی دواړه حاضر ؤو دوئی هم دواړو خط له خپله طرفه ملک احمد ته کښلے وو چه مونږ ستا خیرخواه یو هیڅرے خطره مه کوه را دروسه بادشاه به ښهٔ درسره ؤکا۔

ګویند که دو ملکان ګګیانی نیز خیرخواه ملک احمد دبوند یکے ملک احمد که رشته دار ملک احمد بود دویم ملک یحیٰی

ابن شاهو ابن کند چه دوئی دواړو د سړبن توب په سبب سره د ملک احمد ننګ کاوۀ او ملک احمد به همیشه دربار لره ورتۀ، سلام به ئې کاوۀ او بادشاه به ظاهراً پرې مهربانی کوله د څنګه به ئې کښیناوۀ اما په زړۀ کښې پرې غصه وو شب و روز (ئې) د مرګ په فکر وو۔ لکه هغه شپه را غلله چه صباح به وژلے شي، چا دوستانو ملک احمد په هغه شپه خبر کړ، چه صباح ستاسو مرګ مقرر دے۔ نور ملک احمد خپل خلق را اُوبالۀ کنګاش مصلحت (ئې) سره کاوۀ، رفقاوُ واړو دا خبره سره خوښه کړله۔ چه دستارونه به مونږ واړه سره غوټه کړو۔ تا به پرے زورنه کړو۔ چه کوز شے نور تښته ځان خلاصوه، چه تۀ نۀ ئې بادشاه به مونږ نۀ وژنی او که ئې و وژلو بلا پسے، په مونږ قام نۀ ورانیږی۔ او که تا ووژنی قام به موخوار شی۔ دۀ ورته ووئیل چه احیاناً که دستارونه وشلیږی پریوځم ګډ شم، په ځائے پاتے شم! او که ونۀ شلیږی روغ پاتے شم۔ بارے په څوکئ واوړم ُوسے نیسی او بیا یے په بیرته راولی هغه به ګوره څرنګ شرمندګی وی۔ او د ملک تاج الدین نوم را پورے دے۔ له قدیم الایام از آباؤاجداد روز ګار مو له بادشاهانو سره کړےدے دا تیښته وماته شرم ښکاریږی۔ سلیمان شاه غندے ترۀ مے دلته په دے کابل کښې د مرزا الغ بیګ له لاسه مړ دے، که ما هم دے مړ که، څه باک دے۔ بارے تاسے تښتئ ځانو نه خلاصوئ صرفه مه کوئ نور واړه ملۀ ئې هغه شپه ُوتښتیدل، په کابل کښې ځائې په ځائے مخفی شول او ملک محمود خولا له اوله از روئے کمال دینداری په ابتداء کښې۔ قاضی کره دیره وو د بادشاه سلام (ئې) تبعاً له ملک احمد سرء کاوۀ اما د بادشاه طعام ئې نۀ خوړ او آدو مطرب او یو خدمتګار نور په دیره کښې له

ملک احمد سره پاتے شول ـ

لکه چه صباح شهٔ د بادشاه سړی را غلل ملک احمد ئے روان کړ ـ او ملک احمد په شپه خبر شوے وو چه صباح ما وژنی، نور وپوهیدهٔ چه ما مرګ لره بیائی او درست ښهر د کابل هم بیا خبر شوے وو، چه ملک احمد وژلو لره بیائی ـ لکه په بازار چه ورغے واړو خلقو ئے تماشے کولے او سره ئے وئیل چه ګوری دا هسے شخص بادشاه وژلو لره بللے دے ـ او ملک احمد هم دا رنګ پوهیدهٔ چه دا خلق ځما له مرګه خبردی ـ تماشے ته ے ولاړ دی ـ او په دغه حال کښے ملک میری چه د ملک احمد خیرخواه وو مخے لره ورته راغے ـ ورته ئے وژړل او ورته ئے ووئیل چه د دلزاکو غوندے بدخواهان دلته وُو، ځه لره را غللے! دهٔ ورته ووئیل چه ما تاسے غوندے او ترکلانی غوندے دوستان لیدل هیڅ ویره مے نه کیدله او له تقدیره رخبرنه ووم ـ

ګویند چه سابق له دے وقته هم، چه ملک میری به ملک احمد ولیدهٔ افسوس ارمان به ئے و کړو ـ ملامت به ئے هم پرے و کړ ـ چه دلته ولے راتللے مناسب د نهٔ وو ـ دهٔ به ورته ووئیل چه تقدیر دا رنګ وو ـ

الغرض ملک احمد دربار ته ورغے، بادشاه په قهر په غضب ناسب وو لینده او تودهٔ غشی په لاس کښے نیولی وُو ـ او محض ودے ته منتظر وو. خو چه ملک احمد له ورایه را ښکاره شی نور به ئے په غشی وُلم ـ آخر چه ملک احمد ورغے ـ کورنش

(ئے) وکړ، بادشاه پرے لینده را څکوله، ګذار ئے پرے کاوۀ ـ ملک احمد پوهه شۀ چه فرصت د خبرے پاتے نه شۀ۔ نور زر د قبابندونه (ئے) وشلول برېنډ تتېر ورته ودریدۀ ـ بادشاه چه د دۀ دا حال ولیدۀ متحیر شۀ، لینده ئے سسته کړله ـ پوښتنه ئے ترے وکړله ـ که "اے احمد این چه کردی؟"، ملک احمد ګفت که " آنچه به خاطر مبارک آمده است باید کرد ـ استفسار راچه حاجت است ـ باز بادشاه از وے پرسید که "غرض شما از این بند کشادن چه بود" ـ باز ملک احمد ګفت که "اینک سینه برهنه ایستاده ام به زن مرا چه می پرسی"، پس چونکه تکرار از جانبین به سه کرت رسید بادشاه ګفت "تا ازین سر مرا واقف نه ګردانی نه خواهم ګذاشت ـ ،، آخرش ملک احمد ووېل چه "قبلهٔ عالم! دا هومره خلق هرطرفه ستا د ګذار تماشه بین دی چه بادشاه به څرنګ ګذار کوی او ما قبا اغوستی ده ـ خطره مے شوه چه که غشے د بادشاه اړشی ـ هرڅوک به د بادشاه په ګذار بورے پخپل خاطر کښے وخاندی ـ نور ما خپلے تنړئ زر پرانتلے برهنه سینه مے ورته ونیوه چه غشے د بادشاه رانه آزاد وځی او هرڅوک سره د بادشاه په ګذار آفرین وکا شاباشے پرے ووائی،، ـ

بادشاه چه دا تقریر د ملک احمد واؤریدۀ هرګوره دا خبره (ئے) پسنده شوله ـ پرے مهربان شۀ ـ ورته ئے ووئیل، چه "ملک احمدا قسم دے چه اوس به د ونۀ ولم رانژدیشه،، ـ پس له هغۀ ملک احمد تسلیمات وکړل ورنژدے شۀ ـ بادشاه لینده له لاسه واچوله، دلاسه تسلی ئے د دۀ ډیره وکړله، ورته ئے ووېل چه "ملک احمدا بهلول لوډی افغان څه رنګ څوان وو؟"

ملک احمد ورته ووئیل چه "جهان پناه اسپ بخش وو آسونه ئے بخښل،، - بیا بادشاه ورته ووئیل چه "ملک احمد! دا څوک ئے سلطان سکندر څرنګ ځوان دے؟،، - دهٔ ورته ووئیل چه "خلعت بخش دے خلعتونه بخښی،، - بیا بادشاه ورته ووئیل چه ملکه! زهٔ څرنګ یم؟ دهٔ ورته ووئیل چه"سر بخش ئے سرونه بخښیے"- نور بادشاه پرے ډیر مهربان شهٔ - ملک احمد (ئے) پخپله تر لاس وینوهٔ خلوتخانے ته سره لاړل - هورته ئے جشن شرابخوری سره آغاز کړ - او چه ساقی پیاله راوړله ، بادشاه ترے څه وڅښل او څه ئے پخپل لاس ملک احمد ته ونیول - ملک احمد تسلیمات وکړل هغه پیاله ئے واخستله او (ئے) څښله - ساقی بیا پیاله راوړله بادشاه ته ئے ونیوله، بادشاه ترے واخستله څه (ئے) ترے وڅښل او څه ئے ترے پخپل لاس بیا ملک احمد ته ور کړل - ملک احمد ترے واخستله تسلیمونه به ئے ورته وکړل او به ئے څښل هلکذا درے مرتبے - آخرش په بادشاه کښے اثر د مستئی ظاهر شهٔ پاڅیدهٔ، په رقص ولګیدهٔ او آدو مطرب ورته سرود شروع کړ او ملک احمد لکه فارسی ګوے فصیح زبان خوش آواز وو - په مدح * د بادشاه ولګیدهٔ - نور بادشاه از غایت مستی و ملک احمد ته ووئیل چه "ملکه زهٔ ستا مطرب یم درتهٔ ګډیږم،، - ملک احمد ورته ووئیل "چه ته زما صاحب ئے د درست جهان بادشاه ئے،، - بادشاه بیا دا رنګ ووئیل ملک احمد ووئیل چه

---

* د بادشاه دا مدح چه ملک احمد ساز سره کوله دا به یقیناً چه منظومه وه او نظم کوونکے به ئے هم لازماً چه موصوف به خپله وو - لکه چه د اقتباس نه واضحیږی چه "ملک احمد لکه فارسی ګوے فصیح زبان خوش آواز وو" -

"تهٔ بادشاه ئے ځما صاحب ئے"۔ هلـکذا چند مرتبه دا رنګ (ئے) سره ووئیل آخرش بادشاه لاس د ملـک احمد ونیوهٔ۔ ملک احمد څخه یوه اشرفي په هغه وقت کښې موجوده وه۔ د بادشاه په لاس کښې (ئے) کیښوله۔ بادشاه واخستله لاس ئے ورته تعظیماً تکریماً پخپل سر کیښو۔ پس له هغه بادشاه خپله قبا، توره نجملی له خپلے غاړے وکښله ملک احمد ته ئے ورکړله۔ ملک احمد ورته کورنشونه وکړل وائے خستله وائے غوستله او هغه خپله قبا ئے چه اغوستے وه آدو مظرب ته ئے ورکړله۔

پس له هغه بادشاه ووئیل چه ملـک احمد! هغه نور رفیقان د هم راوبوله چه خلعتونه واړولره ورکړم کورته مو رخصت کړم۔ ملک احمد خپل سړی واستول ملک محمود (ئے) د قاضی له کوره او نور ئے له دیرے را بلل حاضر (ئے) کړل۔ لکه بادشاه اسامی وار لـه واړو خبر وو پوښتنه ئے د نورو وکړله چه "ملک احمد! هغه نور ملهٔ د څه شو" "ملک احمد ورته ووئیل چه قبله عالم هغه له مهربانی د بادشاه او له رخصته د کور خبر نهٔ وو چرته په ښهر کښې تللی دی"۔ نور بادشاه په موجب د سیاهی او د یادداشت چه په دفتر کښې آسامی وارښکلی شوی وو خلعتونه ملک احمد ته ورکړل او آدو لره (ئے) دسرو زرو دوه حلقے د غوږو ورکړلے۔ او حکم (ئے) و خدمتګارو ته وکړ چه ورپه غوږے کانږئ۔ په هغه وقت کښې د آدو یو غوږ سورے وو او بل نهٔ وو لکه چه هغه یوه حلقه (ئے) ورپه غوږ کړله۔ دویم غوږ لره ئے یو نرے سیخ د سوری کونے د پاره راوړ۔ لکه آدو هغه سیخ ولیدهٔ وویریدهٔ۔ ملک احمد ته ورنژدے شهٔ۔ ملک احمد بادشاه ته عرض وکړ چه "قبله عالم!

دے دلته ویریږی مونږ به ئے بیا په دیره کښے غوږ سوری کړو"۔ پس له هغه بادشاه حکم وکړ چه پریږدئی نورئے پریښئ

الحاصل ملک احمد را به عزت تمام رخصت داده از آنجا روانه شده براه ناوګئي بباجوړ آمده و از آنجا به سوات واز آنجا به سمه، به خانهٔ خود آمدند هر چرے چه یوسفزی وُو واړه ورتول شو مبارکبادئ (ئے) ورکړله ۔

پس له هغه چه هغه کال تیر شهٔ، بل کال راغیے بادشاه بیا یادآوری د ملک احمد از برائے مشورت و مصالح بعضے امور وکړله، طلب (ئے) کړ ۔ فرمان ورستاوهٔ او ملک سرخابی ترکلانی هم ورته وښکل چه هغه ګذار د ذلے بلا لیدلے وه ۔ دا ګذار مه ویریږه په خاطر جمع را دورومه، بادشاه په مهربانی یادکړے ئے، حیله حواله مه کوه ۔ لکه چه فرمان د بادشاه او د ملک سرخابی خط ملک احمد ته سمے ته ورغے ۔ قامئے سره* جمع کړ ۔ داحال (ئے) ورته ووایهٔ چه "د بادشاه او ملک سرخابی خط راغلے دے ۔ زهٔ ئے بللے یم ستاسے څرنګ صلاح ده ۔" قام ورته ووئیل چه "ملکه بادشاه تا لیدلے دے مونږ لیدلے نهٔ دے، حقیقت ئے تاته ښهٔ ښکاره دے۔ هر چه ستا صلاح ده هغه زمونږ هم صلاح ده" ملک احمد ورته ووئیل چه "قامه ! ما هغه ګذار مرګ په خپلو سترګو لیدلے دے ځما تللو ته دا ګذار قابو نه کیږی"۔ قام هم دغه رنګ ورته وویل چه "ملکه چه ستا صلاح نهٔ ده، مه

---

* ددے نه دا څرګندیږی چه پښتنو مشرانو به په هر داسے کار کښے د خپل اولس او جرګے صلاح لازمه ګنڼله ۔

دروومه!" بیا بعضے دانایانو سره ووئیل چه "له بادشاه گردن کشی په کار نهٔ ده، که ملک احمد د خپل تلل صلاح نه وینی، دا گذار دِ شاه منصور لاړشی چه دے هم د ملک تاج‌الدین له کوره دے د سلیمان شاه زوے د ملک احمد تربور دے که د بادشاه غرض له دے بللو محض د یوسف زیو اطاعت دی، پس دے هم ورلره کافی دے۔" نورئے دا خبره شاه منصور ته ووئیله چه دا گذار تهٔ بادشاه لره لاړشه۔ شاه منصور ورته ووئیل چه "د ملک احمد خوش زبانی فصاحت ماځخه نشته اوپه ادب آداب د بادشاهانو هم زهٔ نهٔ پوهیږم، پس د تللومے څه فائده دہ۔" بارے وکړے په دا باعث شهٔ چه "خواه مخواه دروومه او هرچه بادشاه درته وائی هغه قبلوه، نور خیریت دے۔" نور شاه منصور لا چار شهٔ ضرورتاًئے قبوله کړه۔ پس له هغه قام ورته پیشکش د بادشاه د پاره تموله کړله۔ شاه منصور تهٔ ورکړله۔ نور شاه منصور له کوره له تانړے ووت۔ د ترئی په لارے کابل ته روان شهٔ۔ باجوړ ته ورغے له هغه ځایه په ناوه‌گئی ورغے کابل ته لاړشهٔ ملازمت ئے د بادشاه حاصل کړ۔ پیشکشی ئے تر نظره تیره کړه۔ بارے بادشاه د دهٔ په ورتلو چندان خوښ نهٔ شهٔ۔ ورته ئے ووے چه ماملک احمد بللے وو۔ تهٔ څهٔ لره راغلے۔ شاه منصور ور ته د ملک احمد عذر معذرت وکړ، بادشاه نور خاموش شهٔ، پس‌له هغه تر هغه پورے چه شاه منصور هورته وو سلام ته به بادشاه تهٔ راتهٔ۔ بادشاه به هم عزت ورکاوهٔ۔

آخرش پس له چندگاه بادشاه شاه منصور ته خلعت ورکړ رخصت (ئے) کړ۔ شاه منصور له هغه ځایه را روان شهٔ کورته راغے قام ورتول شهٔ۔ دهٔ کل ماجرا ورته ووبل۔

و مخفی* نماند که درآن وقت اهل یوسفزئی مطیع بادشاه بودند۔ اما نه چنان که حاکم یا شقدار وے را می گذاشتند۔ و باقلنگ واجبی میدادند زیراکه چندان پروائے نه میداشتند ودیگر آنکه در آن وقتے که ملک احمد از رفتن کابل اغماض کرده شاه منصور را فرستادند ملک احمد قام راتول کړ، ورته ئے وویل چه زهٔ پوهیږم چه زهٔ کابل ته لاړ نهٔ شوم۔ بادشاه به په ماپسے پخپله راشي یا به فوج راستوی ځمونږ په بیخ کنی کبنی به هیڅ صرفه ونه کا۔ پس راشئي چه اول ترے ځان وساتو۔ هر چرے چه یوسفزی یو راشو د مهورے په غرهٔ کښے ننوزو چه که چرے راشی هیڅ موونه کاندی، نور هر چرے چه یوسفزی وو. واړه راغلل د مهورے په غرهٔ کښے ننوتل اؤ غاشي لارے ئے محکمے ونیولے۔

لکه چه شاه منصور له بادشاه را رخصت شهٔ کورته راغے بادشاه نیز دا عیهٔ ملک احمد و ملک یوسفزی درپیش کرده با عساکر وافره از کابل خروج نموده به راه باجوړ متوجه ملک سوات شد۔ وقتے که به باجوړ رسید، اولاً (ئے) میر حیدر علی گبری قلعه محاصره کړه، چه دے د گبریو سلطان وو۔ او دهٔ له میرزا الغ بیگ تیموری سره سابق څه شوخی کړے وه۔ بابر هغه قهر ورته په خاطر کښے وو۔ او په دغه وقت کښے یوسفزی بیا له باجوړه تبتیدلی وو په غرونو ننوتلی وو۔ بے له گبریو دغه ځائے نور ځوک نهٔ وو او هغه قلعه ئے هم ډیره سخته محکمه وه او گبری هم توروزن خلق په کښے وو۔ د بادشاه قابو پرے

---

* دا خبره قابل غورده۔

نه کیده نور ورته پریوت ۔

وائی چه میر حیدر علی نهایت ظالم وو ۔ خپل عزیزان تربرونه ترے واړه خوړ وو ۔ یوهٔ تربور د نورو کبریو په صلاح پټ بادشاه ته عرضی وکښله ورستوله، که من با جمیع عزیزان فدوی فرمانبردار بادشاه ام، اگر مرضئی بادشاه باشد مایان همه به خدمت حاضر خواهیم شد، لکه بادشاه ته دا عرضی د دوئی ورسیدله، بادشاه پرے ډیر خوښ شهٔ، فرمان د طلب [ئے] په نهایت دلاسه و استمالت ورستاوهٔ ۔ هغه تربور د میر حیدر علی له بعضے خلقو سره ورووت ورغے ، د بادشاه سلام ئے وکړ، بادشاه پرے مهربان شهٔ، خلعت (ئے) ورکړ سرفراز (ئے) کړ ۔ بعد ازان روز به روز مردم کبری از قلعه می برآمدند ۔ و به ابن العم حیدر علی می پیوستند و سرفراز می شدند ۔ تا به حدے که کار حیدر علی روز به روز در تنزل می شد و به اضطرار می انجامید ۔ آخرالامر حیدر علی از ترس جان و شرمندگئی خود که آخر این عزیزان مرا دستگیر کرده به بادشاه خواهند داد و بادشاه مرا خواهد کشت زهر خورده به مرد ۔ بعد ازان بادشاه آن ابن العم حیدرعلی را سلطان کبران نموده قلعه را بدو سپرده و آنچه مخالفان ابن العم حیدر علی بودند جمیع آنها را طلبیده بکشتند ۔ و از سر هائے ایشان در آنجا چبوتره ساختند ۔

بعد ازان هم در آن روز از آنجا کوچیده متوجه ملک سوات شد و به موضع دیارون که متصل دریائے پنجکوړه است، رسیده دیره کردند و به ملک احمد فرامین نوشته می فرستادند او قسمونه وعدے (ئے) ورسره کولے چه مهٔ ویریږه راشه ډیر ښهٔ به درسره

وکړم بارے ملک احمد د دهٔ په منصوبو نهٔ غولیدهٔ هرګز پروا ئے نهٔ لرله ـ چه بادشاه د ملک احمد د ورتللو ناآمید شهٔ ـ نور ئے قصد د تاخت پرے وکړ، چه شاید ګوندے په دا ووېرېږی، التجا به راته راوړی ـ نور اردو* ئے دغه ځائے پرېښو او تاخت (ئے) په منګلور وکړ ـ په هغه غاښ چه دے و سوات ته پریوت، هغه غاښی ته تر اوسه د بابر غاښے** وائی ـ له هغه پر دمغار ورغے، د حسین ډېرئ*** په ګذر د سوات په سیند ورپورے وت ـ منګلور ته ورغے ـ هر چه بیرون له قلعے د ښهر کلی وُو ـ هغه ئے واړه غارت کړل او هر چه دننه په قلعه له سلطان اویس سره وُو لکه چه قلعه ډیره سخته وه، هغه ترے واړه سلامت پاتے شو ـ نور له منګلور په بیرته راوجاروت دیارون لره راغے ـ

ګویند هغه ورځ چه بادشاه له دیارون په منګلور تاخت وکړ، د پنجکوړے تر سیند چه ورپورے وت په تالاش ورغے، د

---

* لښکر

** په دے غاښی د شوے تیندو ډاک نه ګامکوټ خزانے ته لار اوړیدلے د ـ ورپسے د سوی ګلئی غاښے دے چه د شموزو نه برے د نیکی خیلو علاقے ته لار ده ـ

*** اوس په سوند ډیرئ یادیږی ـ د منګلور نه لاندے د سیند په بله غاړه یو وړوکے شان ګلے دے ـ دا ځائے د سیند یو قدیمی ګودر دے چه د سیند دواړو غاړو ته پرے آمد و رفت کیږی ـ

کاتگلے تر تنگی ور تیر شۀ ـ هورته په سمه لار کښے چه
همواره چشمداره زمکه ده ـ پیرۍ غټ شایسته بلند متصل دوه
نښتره ولاړ وُو چه از غایت اتصال بۀ خلقو گنړل چه گوندے
بیخ د دواړو سره یو دے ـ اما دوئی په واقع کښے سره جدا
جدا وُو او هر څوک چه په هغه لارے په هغه مقام ورغے ورته
به ُودریدۀ نهایت متعجب شۀ ـ تماشے به ئے کولے، بادشاه هم
چه په هغه مقام ورغے ـ هغه دواړه نښتر (ئے) ولیدل ډیر متعجب
شۀ ـ یو ساعت ورته ودریدۀ ننداره (ئے) وکړله، نور ترے روان
شۀ او خپلو خلقو سره ئے ووئیل چه له هغه طرفه بیا په دا
لارے راشم نور به دا دواړه نښتر له بیخ نه څه قدر، زمکے سره
ُولوړوم کابل ته به ئے یوسم، لکه چه بیا له منګلوره راوجاروت
په شخه لار باندے راغے، حکم ئے وکړه چه دواړه نښتر له جړه
له څه قدره زمکے سره وکاږئی ، کابل لره ئے یوسئی چه هورته ئے
کیږدو- امیرانو ورته عرض کړ چه کابل ته وړل د دوئی نهایت
مشکل دی نو صلاح دا ده چه بادشاه له خپله لاسه یوه نخښه په
دوئی پورے کا، چه هر څوک چه په دا لارے تیریږی او د
بادشاه د لاس نخښه وربورے وویني د بادشاه نوم به پرے
یادیږی ـ بادشاه هم هغه خبره خوښه کړله له خپله ترکشه ئے
دوه غشي ُوکښل په دواړو غشیو (ئے) یو یو گذار په هر نښتر
وکړ پاس ئے په سر لک کړل ـ نور ترے روان شۀ ـ

گویند هغه دواړه غشي په هغه دواړو انښترو تر دوو کالونو
لک ولاړ وُو او هر څوک چه به پس له هغه په هغه لارے
راغے د بابر د هغو غشیو تماشے به ئے کولے او هر چا څخه
چه به لیندۀ غشي وُو یو یو گزار به ئے د غشیو هم په هغه

نښترو کښول، چنانچه هغه دواړه نښتر پس له ډیرو کالو نور په غشیو ډک شو، تر هغه پورے هغه غشي د بادشاه او د خلقو لک ولاړ وو - چه هغه دواړه نښتر زاړهٔ شو له جړه پریوتل -

مؤرخ محقق و قاصی این قصص خواجو می گوید، چه بارها هغه دواړه نښتر چه د بابر غشي پرے لک وو- ما لیدلی وو او په هغه وقت کښے چه دوئی له بیخه پریوتل زهٔ بیا په ډیره وم، پس له هغه بیا بر روش نور نښتر چه په هغه مقام ولاړ وو- خلقو به هغه بیا په غشیو ویشتل چهٔ هغه هم بیا د غشیو ډک شوو زاړهٔ شول پریوتل - پس له هغه نور نښتر چه په هغه گرد نواح کښے ولاړ وو هغه ویشتل شو - تر هغه وقت پورے چه په هغه مقام کښے یو نښتر هم پاتے نهٔ شهٔ، هلـه هغه رسم عادت د غشیو ویشتلو له خلقو پورته شهٔ - او هغه ورستی نښتر چه د غشیو ډک شوی ؤ و لا تر اوسه ولاړ وو- په دا نزدے ورځو کښے پریوت او د بابر د هغو نښترو د ځائے نښانه اوس هم شته دے - چه په هغه وقت کښے دا دستور وو چه هر څوک چه به هورته ورغے یو یو کاڼړے به ئے ترے د لاندے آچاوهٔ چنانچه هورته لوے د کاڼړو توپ شهٔ -

القصه بابر چه له منگلوره راوگرزیدهٔ په دیارون دیره شهٔ - نورے جاسوسان هر کاره معین کړ، د مهورے لارے کتـله د تاخت دوړ په فکر وو، اما لکه ملک احمد ډیره محکمي د لارو کړے وه او درست د مهورے غرے له لبنکرو ډک کړے وو هیچرته رخنه او لارے بیا نهٔ مونده داؤ ئے پرے سر نهٔ شهٔ نور قصد (ئے) وکړ چه په طریقه د سیاحئی په جامه د قلندرئی کښے پخپله

مهورے ته ورشم احوال د لارو او د لښکرو د دوئی معلوم کړم ـ او په دا طور سیاحت سره دے مشهور وو، چه دا هر کله د دهٔ دستور وو نور له بعضے خواصو سره په جامه د قلندرئی کښې خفیه له لښکره ووت مهورے لره ورغے او مهورے له دیارون د یوے ورځے لار ده نور ئے کل احوال د غرهٔ او د لارو د لښکروسعلوم کړ چه مضبوطی د هرے چارے ولیدله نور دے ترے مایوس شهٔ ـ

گوئند چه د مهورے په سر کښې یو بلند لوړ مکان وو چه منصور د ملک احمد تربور پرے باندے میشتهٔ وو ـ او هغه مکان ته به د شاه منصور تخت وایهٔ شهٔ ـ چنانچه تر اوسه پورے هغه غونډئی ته د شاه منصور تخت وائی ـ هغه غوندئی مشهوره ده ـ اتفاقاً ترخ د لوئے اختر وه ـ شاه منصور غوا کوتل وے قربانی ئے کړے وه غوښے (ئے) پخے کړے وے خلق (ئے) پرے ورکړه اژدهام وو ـ بابر هم د تماشے د پاره باس ور وخوت ـ هورته په غولی کښې یوځنگ ته کیناست او هغه مکان چه دوئی پرے کښیناست د شاه منصور د ښځې د ورهٔ مقابل وو او دننه په ښځې کښې مقابله د ورهٔ د شاه منصور لور بی بی مبارکه نام ناسته وه چه نهایت ښائسته، عاقله، هوښیاره وه چه هغې دوئی وایدل و (ئے) گنړل چه گوندے قلندران دی نورئے غوښے په پاستو کښې ونغښتے د خپل سړی په لاس (ئے) و هغو قلندرانو ته ورستولے ـ بابر هغه واخستے اوله هغه سړی نه ئے پوښتنه وکړله چه دا چا راستولی دی ـ هغه سړی ورته ووئیل چه د شاه منصور لور بی بی مبارکے درته راستولے دی ـ چه هغه ده دننه په ورهٔ کښې مخامخ ناسته ده ـ بابر چه ورته کتل دا ئے ولیدله، نهایت پرے

سیئن شۀ ـ نور له هغه سړی نه ئې پوښتنه وکړله چه دا څومره ده ـ چاته ئې ورکړے ده که نۀ ده ؟ هغه سړی و وئیل چه ځوانه ده او په عقل په خصلت په عفت په فراست نظیر نۀ لری ـ لا منسوبه کړے نۀ ده ـ او فی‌الواقع دا په اوصاف و حمیده ؤ موصوفه وه ـ نور بادشاه پرے نهایت فریفته شۀ ـ او خیال د دے ئې په خاطر کښے کالنقش فی‌الحجر شۀ ـ نور له هغه ځایه ووت هغه غوښے چه په لاستو کښے نغښتے وے، سره یوړے د ښپړ د ورستو په لویه پرښه یعنی تیږه کیښولے او د پاسه ئې هم یوه لویه پلنه‌بله پرښه پرے کیښوله، نور ترے روان شۀ راغے لښکر لره ـ

بس له هغه ئې ملک احمد او شاه منصور ته فرمان وکښۀ چه د بی بی مبارکے دوستی راسره ُوکانړئ نور به زۀ غرض درباندے نۀ کړم ـ دیر ښۀ به درسره ُوکړم ـ ملک احمد او شاه منصور چه فرمان ولیدۀ نور منکر ُشو ورته ئې وکښل چه مونږ مطلقاً لور نۀ لرو او بر تقدیرے که لور مو هم درلل‌ے، هم زمونږ د مغلو سره چرے نسبت نۀ دے شوے ـ دا به له مونږ ُونۀ شی ـ بادشاه بیا ورته وکښل چه!

” ما له تاسے سره څه بدی نۀ ده کړے تاسے دواړه چه کابل ته راغلی وئ ما دواړه سرفراز معزز رخصت کړئ* او چه بیا ملک احمد یے وباله راځنے یاغی شۀ چه اوس یخپله درپسے راغام هم راته رانغیے او چه اوس دوستی درځنے غواړم هم عذرونه راته کوئ منکرېږئ دا مو مناسب نۀ دی چه د شاه منصور لور بی‌بی مبارکه نام یخپله یے لیدلی نه نبه (ئے) دا

---

* اصل کښے ”کړل“ لیکلی دی خو غالباً دا به د لیک غلطی وی ـ

ده چه زۀ د لوئے اختر په ورځ له یو څو کسو په جامه د قلندرانو کښیے په نیت د ملک د لیدنے دغه ځائے درغلے وُم، شاه منصور قربانی کړے وه غوښیے ئے پخے کړی وے۔ عالم پرے رابللیے وو مونږ هم د قلندرئی په طور ورکړه ورغلو مقابل د ځپر د ورۀ بوے کنارے ته د غولی کیناستاو او دنته د ځپر په ورۀ کښیے مقابله بی بی مبارکه ناسته وه جانبین مونږه سره وُلیدل۔ چنانچه دے څه قدر غوښیے په پاستو کښیے نغښتے هم مونږ لره راستولے۔ هغه غوښیے پاستے مونږ راواخستے د ځپر د وروستو په یوه تیره مو کیښولے د پاسه مو پرے یوه بله پلنه تیره کیښوله محض د نشانی د پاره چه تاسے منکر نۀ شئی۔ اوس تاسے ورشئی هغه وُګورئی که دا نخښه او خبره په رښتیا وی نور انکار مو فائده نۀ کا۔ دغه دوستی راسره وکانړئی چه دغه زما لوئے عذر دے او که نۀ وی زۀ له کابله څو د تاسے په مهم راوتلے یم اوس بے عذره جاروتل و ما ته شرم ښکاریږی نور به سره ګورو هر چه اراده ده هغه به کیږئی"۔

نور ملک احمد او شاه منصور سری ورستول هغه ځائے ئے وکوت، هغه غوښیے پاستے لکه چه بادشاه کښلی وُو په رښتیا ئے هغه بیا موندے۔ یقین ئے حاصل شۀ چه مقرر بادشاه راغلے دے بی‌بی مبارکه ئے لیدلی ده نور ئے بیا بل شان بهانه راوړه چه "زمونږ له مغلو سره هڅ مات دے۔ میرزا الغ بیګ وژلی یُو، زمونږ او د دۀ څه نسبت شان دے"۔ بارے بس له هغه شیخ ملی او ملک قره اوغیره اعیانو ملکانو ورته وویل چه له بادشاهانو سره سر تیزه او درشتی په کار نۀ ده د امیر تیمور نسیے دے او د

تاسے شان شوکت هم ورته معلوم دے ـ قدر شناس دے او بل دا چه تاسے هر کله د قام نگاهبانان یاستئ قام مو ساتلے دے ـ دا گذار هم قام له دے بلا وساتئ ـ دا رخنه په بی بی مبارکے بنده کړئ چه خوله ئے را نهٔ وخیژی ـ آخر ملک احمد د قام خبره ومنله راضی شهٔ اما شاه منصور ووئیل چه د بادشاهانو جهیزونه اسبابونه د وادهٔ گران دی زهٔ ئے توان نهٔ لرم ـ تومن ورته ووئیل چه اسباب د دے کل په مونږه ـ مونږ به سرهٔ زر جمع کړو شرم آبروی به د مونږ په ځائے کړو ـ دا چار زمونږ د هر چا سره ده آخر شاه منصور هم راضی شهٔ بی‌بی مبارکه ئے بادشاه ته منصوبه کړنه ـ

بعد از آن اهل یوسفزی مبارک‌بادی به بادشاه نوشته روز شادی مقرر ساخته مطالب خود هارا عرض کردند که مایان به جدوجهد بسیار ملک احمد و شاه منصور را رضا مند ساخته بی‌بی مبارکه را نامزد شما گردانیدیم پس توقع از مکارم اخلاق بادشاه چنان است که حق خویشی و دوستی را منظور نظر داشته شیوهٔ الطاف را مرعی دارند عفو تقصیر اینجانب نموده عنان توجه بدان طرف گردانند پس چون که خبر این مژده به بادشاه رسید ـ بادشاه از بس خوشی نوبت نهاده شادیانها نواخته و آنچه مسئول و ماسول ایشان بودند همه به سمع قبول اصغا نموده پیمان کردند که بعد از اتمام کار شادی روانهٔ کابل شده خواهم رفت و به‌هیچ وجه مزاحم احوال ایشان نه خواهم شد ـ

الحاصل بعد ازان اهل یوسفزی مطابق حصه و رسد زر را جمع نموده به شاه منصور رسانیدند شاه منصور زر الوس و مقدور

خود را صرف کرده جهیزِ شاهانهٔ بی‌بی مبارکه را تیار ساختند۔

گویند که زیور لائقه والبسه نادره و خلعتهائے فاخره وغیره لوازمه چنانچه اسونه خیامونه شامیانے ظروف مسینه وینځے زرتر زره ئے تیار کړل بادشاه (ئے) خبر کړ بادشاه د خپل ځان په ځائے خپله توره ورستوله نورئے بی‌بی مبارکه په ډولئی کښیے واچوله ۔ ملک احمد او شاه منصور سره له لښکرو سره شو، له مهررے ووتل په تهانه ورغلل د چکدرے په گذر د سوات ترسیند پورےوتل پر چکدره پراوچ د کاتګلے په تلاش د تړئی په غاشی ورغلل هورته ودریدل او دتړئی د غابئی او د بادشاه تر لښکر یو کروه لار وه ۔ او کوز تر غابئی د بادشاه امیران له لښکره سره چه بادشاه د بی‌بی مبارکے په استقبال راستولی وُو، ولاړ وُو لکه چه ملک احد او شاه منصور د بادشاه لښکر ولیدهٔ ۔ نور ئے غلامان خادمان ورسره کړهٔ دائے رخصته کړه ۔ دوئی ترے وُجار وتل ۔ پسته لاړل په چکدره ئے شپه کړله ۔ او د بادشاه امیرانو د بی‌بی ډولئی په مخ کښیے واخسته لښکر ته ئے ورسوله ۔

و در آنجا به جهت بی بی مذکوره سرائچه خاصه متصل خیمهٔ بادشاه قائم کرده وے را به اعزاز تمام دران فرود آوردند۔ وهمان شب اعلی حرم بادشاه و امیران به جهت ملاقات وے می آمدند۔ اما وے تعظیم هیچ کس نه می کرد۔ قیام نمی نمود۔ وسخن نه می کرد۔ چنانچه تمامئ شب هم برین قسم به گذشت۔ علی الصباح آن وقت نماز ظهر چون بادشاه نماز به مسجد ادا کرده روان شده۔ متوجه خیمهٔ بی بی گشت۔ کنیزانو بی بی خبره کړه چه بادشاه په دا طرف راغے دا جوړ خبرداره شوه۔ خو چه

بادشاه د خیمے له ورۀ ورننوت دا زر له پالنکه کوزه شوله لاس په نامه سخ پټے په ادب ورته ودریدله ـ چه بادشاه نیژدے ورغے دے ورته کورنش وکړۀ ـ په ادب ودریدله ـ بادشاه نور په پالنگ کیناست دے ته ئے ووئیل چه "پښتنے کښینه!" دے ورته بیا کورنش سلام وکړ کښې نۀ ناسته ـ بادشاه بیا ورته ووئیل چه "پښتنے کښینه!" اهکذاسه مرتبه بادشاه ووئیل چه پښتنے کښینه اما دا به نه کښیناستله او سلام به ئے هر گزار ورته وکړ ـ پس له هغه بادشاه لاس ور واچاوۀ را ئے کښباله پلوئے د دے له مخه ارے کړ ـ اما دے ورته له حیا ستر گے پورته نۀ کرے ـ بادشاه په خوئی خصات په صورت ئے هر گوره میئن شۀ ـ بیائے ورته ووئیل چه پښتنے کښینه ـ پس له هغے دے ورته ووئیل چه "زۀ یو عرض لرم" ـ بادشاه ورته ووئیل چه "و وایه" دے ورته پلو ونیو وئے وئیل چه "زۀ خپل قام نه بادشاه په جولئی غواړم ـ که د بادشاه مهربانی وی ځما قام د ځما جولئی ته واچاوۀ شی ـ او تقصیر دئے معاف شی ـ" بادشاه ورته ووئیل چه "ښه پښتنے ستا قام مے ستا وجولئی ته واچاوۀ تقصیر می (ئے) معاف کړ ـ خاطر جمع لره ـ" دے ورته بیا تسلیم وکړ ودریده ـ بادشاه نور لاس ور واچاوۀ له ځانه سره ئے په پالنگ کښینوله په ملاعبت سره مشغول شو لکه چه آذان د نماز دیگر ووایۀ شۀ ـ بادشاه پاڅید بی بی مبارکه زر پاڅیده کفشے ئے بادشاه ته سمے کړے کیښولے ـ بادشاه ورته وخندل او په اوږوئے ټک وهله ـ ورته ئے ووئیل چه "پوهیږم چه دا تعلیم واړه د ملک احمد دے ـ چه درته ئے کړے دے ـ او اداب (ئے) درته ښیلی دی ـ" نور (ئے) ووئیل چه "زۀ له تانه او ستاله قام راضی شنوم ـ ستا په مے مسی دوئی وبخښل " نور بادشاه ووت بیرون

لاړشۀ۔ او فی‌الواقع دا طور اطوار او ادب اداب تعلیم ورته د ملک احمد وو۔

الحاصل بادشاه پس له اتمام د کارخیر از موضع دیارون مراجعت نموده براه باجوړ به کابل تشریف بردند و بی بی مبارکه را به نهایت اعزاز برده محبوبه و مرغوبۀ وے بود بنا برآن جمیع اهل حرم بادشاه را حقد و حسد دا منگیر شده در خاطر اندیشیدند، چه که له دے فرزند پیدا شی اغلب چه سلطنت بادشاهت په افغانانو قرار ونسی۔ نور ئې دے ته پټ پوشیده هسے دارو ورکړ۔ چه شنله عقیمه محضه شوه هیڅ حمل (ئے) ونۀ شۀ۔ پس له هغه یوسف زی له مهورے راکوز شو پخپلو ملکونو آباد شول۔ او د ملک احمد او شاه منصور له بادشاه سره دوستی خپلوی گرمه شوه همیشه به دوئی د بی بی نیر گیری کوله آمد و رفت به د سړیو له دوارو طرفه کیدۀ۔

پس له څو کالو نور بادشاه هندوستان ته راغے کل هندئے مسخر کړ نور میر جمال د بی بی مبارکے ورور باجمعی ملک زی په بی بی مبارکے پسے هندوستان ته راغلل ملازمت د بادشاه ئے حاصل کړ۔ بادشاه پرے ډیر مهربان شۀ صاحب جاه او صاحب منصب (ئے) کړل۔

وقتے که بابر بادشاه از دار فانی نقل نمود و نصیرالدین محمد همایون بادشاه شد در دوروے لیز اینچنین معزز و موقر بود بلکه زیاده ازان معظم و محترم گشت و در دارالسلطنت لاهور در محله قوم فرمولیان قصر هائے رفیع و منازل اعلیٰ میداشتند و بعد

از وے پسران و نبیرہ گان و در عصر محمد اکبر بادشاہ بہ دستور سابق جاگیر دار و منصبدار بودند۔ حتیٰ کہ در وقت محمد جہانگیر بادشاہ نیز یک دو نبیرۂ وے معزز و مؤقر بودند و میر جمال در دور محمد اکبر بادشاہ وفات یافت و بی بی مبارکہ عمر خود را در نہایت دولت و عزت بہ سر بردہ حتیٰ کہ پیر و فرتوت شدہ و در وقت محمد اکبر بادشاہ او نیز فوت شد اللّٰہم اغفرلی و لہا و لجمیع المؤمنین والمؤمنات برحمتک یا ارحم الراحمین۔

رجعنا الی القصہ الحاصل وقتے کہ بابر بادشاہ از سوات مراجعت نمودہ بہ کابل رفتند مردم یوسف زی از کوہ مہورہ فرود آمدہ در مخالفت و مہم سلطان اویس مشغول شدند حتیٰ کہ سدام بند و امارات سلطان مذکور مسی نمودند و ملک و دہات ویرا خراب می ساختند تا کہ سلطان مذکور از حد عاجز شدہ رو بفرار آورد و با جمیع متعلقان از سپاہ وغیرہ از حصار منگلور برآمدہ لہ تمامی سوات بدر شول۔

چنانچہ د سوات لہ سیند بورے وتل پہ تاج خیلہ ورغال پس لہ ھغہ پہ غرۂ واوښتل درے ځلور شپے ئے پہ غرونو کښے وشوے نور نیاک تہ ورسیدل ھورتہ مقام شول او ھغہ مقام د نیاک د غرونو پہ میان کښے دے۔ ملک واړہ زیم دار چشمہ دار شالی زار دے۔ او اطراف وجوانب نہایت کثیرالربیع واښۂ ځنګل لری ګردا ګرد واړہ کفار وُو اوس ھم پرے واړہ کفار میشتۂ دی۔ ھورتہ ئے نور رفیعہ قلعہ محکمہ واچولہ نوم ئے لاھور کیښو او ګردا ګرد ترے د کفارو کلی وُو واړۂ ئے پہ خپل تصرف راوړل لکہ چہ اول وو ھغہ ھسے بیا صاحب جاہ سلطان شۂ۔

ومدت بسیار سلطانی آنجا کرده بعدهٔ بعارضهٔ بدنی وفات شد،
در آنجا مدفون گشت وفیروز شاه قزان شاه نامان فرزندان از وے
خلف ماندند، چنانچه فیروز شاه به حکم کلان سالی قائم مقام پدر
شده سلطان گشت۔ روزے قزان شاه به طریق سیر و شکار بالائے
کوه رفته بود اتفاقاً تجسساً د یوسف زیو دهاړه پرے ولګید له۔
جنګ سره وشه قزان شاه ئے په غشي وویشت له آس پریوت
ومړ او سرئے د قزان شاه پرے کړ را واخست خان کجو ته ئے د
لنډی سیند په غاړه راوړ، چه دے په هغه وقت د غوریه خیلو
په مهم وتلے وو۔ د لنډی سیند په غاړه پروت وو۔ چنانچه هغه
احوال به هم نور پخپل محل کښے راشي۔ او فیروز شاه د هغه
ملک سلطان وو۔ ډیر کاله ئے سلطنت وکړ چه زوړ شه نور
ومړ او پس له فیروز شاه سلطانی د فیروز شاه د زوی سلطان ماه
شوه او پس له سلطان ماه سلطانی د زین اعلیٰ شوه هکذا درجه به
درجه تا بسیار پشت سلطنت در ایشان بود۔

الحاصل وقتے که سلطان اویس از منګلور بدر شده جمیع
ملک سوات بدون ملک موتراوی در قبضهٔ یوسفزی در آمد۔
ګویند چه یوسفزیو تمامی ملک د سلطان اویس په شپاړس کاله
کښے واخست پخپل تصرف (ئے) راوړ او په آولسم کال (ئے)
لښکر ملک موتراویو ته وکړ۔ موتراویو ته متوجه شو۔ ملک
متراوی ملک وسیع و طویل است و بر کنارهٔ دریائے سوات طرف
جنوبی واقع است و دریائے سوات تا موضع منګلور از طرف قطب
و کاشغر می آید و از منګلور تا دریائے پنجکوړه روبه قبله میرود۔
از پنجکوړه هر دو دریا باهم تا دریائے آګره و اشنغر روبه
سهیل میرود، پس له هغه نور د پشاور په سیند ګډ شي۔

القصہ چون مردم متراوی از لشکر یوسفزی استماع یافتہ
نہایت متوحش شدند و دروبست از اطراف و جوانب باہم آمدہ
در قلعۂ بالگرام* متحصن شدند و بالگرام نام قعلۂ ئیست کہ بر
سرکوہ واقع است۔ و نہایت منیع و رفیع است ۔ او گرداگرد لوئے
غر دے د دبنمن د لگئو ځائے ورتہ نشتہ، او ملک حسن بہ
لہ خپلو عزیزانو سپاھیانو سرہ ھورتہ پہ کښے اوسیدۂ او نور
رعایا خلق بہ بیرون گرداگرد پہ کلیو کښے اوسیدل ۔ لکہ چہ
لښکر د یوسفزیو ورغے پہ کاتگلئی ورتہ دیرہ شۂ او پہ درست
ملک د موتراویو کښے ھموارہ زمکہ خو دغہ دہ، نور ملک
ھمگی غرونہ دی ۔ نور یوسفزی بہ ھرہ ورځ د قلعے خوا لرہ ورتلل
او دوئی بہ ھم لہ قلعے بہر ورتہ راوتل جنگونہ بہئے سرہ کول ۔
یوہ شپہ رحیمداد ابن ملک احمد خدرزے لہ څہ قدر سنډرو سر
پټ پہ شپہ ورغلل د قلعے د پاسہ پاس پہ غرۂ وختل ۔ سرکوب
(ئے) ونیوۂ او موتراوی ھیڅوک ور خبر نۂ وُو، لکہ چہ صباح شۂ
انبوہ لښکر د یوسفزیو قلعے وتہ روان شۂ، موتراوی ھم پہ طریق
معمول لہ قلعے ور ووتل مخے تہ ورغلل جنگ (ئے) سرہ آغاز کړ ۔

گویند چہ اول پائی ابن ایسکو بائیزی یوسفزی ورگډہ کولہ
پہ حاجی شاہ نام موتراویئے گذار وکړ څکہ چہ زنگی نام ورورئے
پۂ دغہ جنگونو کښے د موتراویو دلاسہ پہ نژدو ایامو کښے
مړ وو، او لہ ھغے طرفہ فخر نام موتراوے راغے پہ پائي (ئے) د
نیزے گذار وکړ ۔ چنانچہ نیزہ ئے د پائی پہ زغرہ کښے ونښلولہ
لہ آس ئے پرےئست پہ دغہ وقت کښے پیر علی ابن میرک علیزے

---

* بلو گرام

وربسے راغے هغه نیزه ئے ترے په توره ووهله دوه ټوکړے (ئے) کړله۔ چنانچه نیمه د هغه موتراوی په لاس کښے پاتے شوله او نیمه د پاٸی په زغره کښے پاتے شوله۔ علیٰ هذالقیاس دا رنګ جانبین لښکرے سره ونګیدلے، لکه چه موتراویو د غرۀ په سره هم خلق ولیدۀ متردد شو وتښتیدل لاړل په قلعه ننهوتل۔ نور یوسفزیو قلعه محاصره کړه۔ جنګ سره له پاسه له کوزه کیدۀ۔ په دا میان کښے رحیمداد هم له خپلو خلقو سره له غرۀ راکوز شۀ۔ بارے * پناهونه ئے زر زر د قلعے په خوا کښے تیار کړل درسته ورځ ئے سره جنګ وکړ، چه شپه پخه شوله موتراوی له یوۀ طرفه د قلعے چه هغه طرف کمزوو۔ ځائے ورته د پناه د بارئی نۀ وو، خالی وو، نور ووتل وتښتیدل او مال متاع [ئے] کل پاتے شۀ او یو څو سړی ئے هم محض د تلاوی د هاهو د پاره په قلعه کښے پریښول، چه تا سے د شپے شور غوغا کوئی چه یوسفزی ونۀ پوهیږی چهموتراوی وتښتیدل نور سحر ته تاسے هم راپسے راځئی۔

الغرض موتراوی په شپه وتښتیدل، چه سحرشۀ هغه مابقیه هم وربسے لاړل په غرونو ننهوتل چه صبا شۀ یوسفزی خبر شول ورغلل په قلعه ور ننه وتل، قلعه ئے لوټ کړله مال اموال (ئے) بےنهایت پهلاس کښیوت او ملک د موتراویو (ئے) هم درست په طرف وراغے او مردم موتراوی ډیر کاله په غرونو کښے سرګردان پریشان ګرزیدل۔ آخر آهسته واړه راغلل پخپلو

---

* په اصل نسخه کښے بارئی لیکدے چه په دے حقله ترے څه معنے نۀ را اوځی۔ څکه باره اولیکلے شوه۔ چه کمین ګاه ته وئیلے کیږی۔

مواضعو آباد شول رعیت شول ـ او یوسفزیو درست سوات سره تقسیم کړ، هر څوک سره پخپلو حصصو رسدونو قائم شول، خاطر جمع شُو و ملک حسن معه متعلقان خود از راه شرم وناموس جلاوطنی و محنت کشی اختیار نموده در کوه ماندند، وقتے که ملک حسن فوت شد متعلقان وے نیز به مردم یوسفزی التجا آورده باز آمدند و رعیت گشتند و ازآن روزے که فتح قلعه بالگرام شده هیچ منازعے وسهیم یوسفزی در تمامی ملک سوات نماند ـ

گویند که در سال هفتدهم تمامی سوات در تصرف ایشان در آمد و در آن وقت اکثر از اعیان یوسفزی چه د سوات سهم آغاز (ئے) کړے وو او جنګونه ئے کړی وُو، لکه ملک قره پدر خان کجو و موسیٰ بن ایسکو بائزے اکوزے و موسیٰ ابن ابابکر کنازے مندړ وغیرهم این چنین وفات شده بودند و قبر ملک قره در موضع تهانړه بسیار مشهور و عیان است اللهم اغفرلی ولهٔ والجمیع المومنین والمومنات برحمتک یاارحم الراحمین ـ

# مقام چہارم

## در بیان آمدن گگیانی به ملک دوآبه و آمدن
## محمد بابر بادشاه از کابل به پشاور و تاخت وے
## بر مردم دلزاک سکنه کالهپانړئ

مخفی نماند چه قوم د گگیانی چه ورستو په کابل پاتے شوے
وو بابر بادشاه ورسره نهایت مخالفت واخست خوارو زار شو نور
بالکل له کابله راو کوچیدل په یوسفزیو پسے را کښته روان شو مګر
تپه د موسیزیو چه له یوسفزیو سره ئے عداوت لاره لکه پخوا چه
مسطور شوی دی هغه هورته په ځائے پاتے شو او په هغه وقت
کښے سردار نامی د گگیانو ملک همزا ابن یعقوب مغل خیل وو
که سردار نامی صاحب جاه مقرب حضور محمد بابر بادشاه بود او
ورپسے ملک میرے لالهزے او ملک یحیی میرزے چه دوئی
دواړه هم ځرګند نمایان ملکان وو او دوئی دواړه له ملک احمد
ملکزی سره څه رشته داری قرابت هم لاره، نور دوئی دواړو په
اتفاق سره یو څو نامدار ملکان وړاندے ملک احمد ته دوآبے
لره را واستول ورته ئے وویل چه ورشئی ملک احمد ته، دا
شکستگی جلاوطنی څمونږ واړه ورته ظاهره کړئی، او وائی چه
په کابل ډیر خوارو خسته شو هه تا پسے راغللو، د نیکئی د
مهربانئی د اوس امیدوار یو هغه ملکان د وړاندے له کلهو سره
ملک الملوک ملک احمد ته راغلل دا احوال ئے خپل ورته ځرګند
کړ۔ ملک احمد ورته وویل چه هرکله راشئی ډیر ښه وشو چه
خدائے راپسے راوستلئی خاطر جمع لرئی، درسته دوابه موتاسے تسه
درکړی ده۔ دروشئی ورباندے ملئی۔ نور هغه ملکان د گگیانیو

رخصت شُو پستنه لاړل دا خوش خبری (یې) و خپل تمام ته ورسوله قوم یې پورے نهایت خوشحال شۀ را وکوچیدۀ د کړپے په لارے دوآبے ته راغلل له ملک احمد، له شیخ ملی، له ملک قره پدر خان کجو سره ملاق شُو۔

عاقبت الامر یوسفزی هرچاسره په خوش په خورمه له دوابے ولیږدل اشنغر ته پورے وتل۔ هرچرے په سمه خوارۀ شُو او دوآبه (یې) وګګیانیو ته پریښوله۔ ګګیانیو په حسب د رسد تقسیم کړله۔ هر څوک سره پرے باندے آباد شول۔ له هغے ورځے دوآبه نور د ګګیانیو شوله۔ لکه‌چه دوه کاله تیر شُو نور نهایت صاحب جمعیت شُو۔

آخرش اتفاقاً یوه ورځ ملک احمد او شیخ ملی‌لۀ ساو غټو نامدارو ملکانو سره ملک همزه ګګیانړی لره دوآبے ته راغلل ملک همزه یې له راتللو ښوا خبر شوے وو۔ ځانے (یې) ورته اول جوړ کړے وو۔ خیمه یې ورته ودرولی وه۔ فرش فروش (یې) ورته په کښے غوړولی وُو پالنګ یې ورته آچولے وو۔ نهالئی پشمینه(یې) پرے غوړولے وه، تکیه یې پرے ایښے وه او دۀ هم هر ګوره قیمتی ښے جامے اغوستے وے ځان (یې) جوړ کړے وو په کبر په دماغ سره پرے دپاسه ناست وو۔ سبباً هغه وقت ملک احمد ورستو پاتوشوے وو۔ او نور ملکان د یوسفزیو وړاندے په خیمه ور ننه وتل ورغلل ورسره ملیا شوُ۔ او دے از راه کبر ورعونت ورته پانه څیدۀ۔ په صد غرور او ناکام یې هریوۀ ته لاس په ناستے ورکاوۀ مصافحه یې ورسره کوله۔ لیکه آخر ملک احمد ورننه وتو۔ دا سلوک کبر رعونت د دۀ له عزیزانو سره (یې)

ولیدۀ۔ چه لاس ئے په ناستے یوسفزیو ته ورکول۔ ملک احمد هرګوره پۀ غصه شۀ۔ دا خبره پرے نهایت بده ولګیدله۔ نور هم هسے له ورۀ پسته را وګرزید۔ له ملک همزه ګګیانی سره ملیا او ملاق نۀ شۀ او په علانیه سره ئے په زوره وویل چه :

''دا هغه ناکسه بد طینته ګګیانے دے چه په کابل (ئے) له مونږ سره خه کړی وُو۔ ما اوس دا هسے وګڼړل چه شاید دے له هغو خپلو بدو پښیمان شوے دے په ما پسے راغلے دے ځکه ما دوآبه غندے ملک دۀ ته ورکړ۔ بارے اوس معلوم شو چه هغه بد خصلتی جبلی او بغض عداوت په دۀ کښے لا باقی دے ځکه ځما عزیزانو ته ئے په ناستی لاس ور کړ۔ خیر که زۀ سړۀ یم، د دۀ دا غروربه له سره وباسم او د کابل د هغو خپلو بدیو قصاص به ترے واخلم۔''

لکه دا خبرے او غصه ملک احمد وکړے، ملک همزه او نورو ګګیانیو هو به هو واؤریدلے۔ بارے هیڅا غږ ونۀ کړ۔ واړه مشغل اوساکت شول۔

الغرض ملک احمد په غصه په تهر له هغه ځایه ووت، سور شۀ، او عزیزانو ته ئے آواز وکړ چه رادروسئی، د ګګیانیو نیت راته معلوم شۀ۔ نور واړه هم په هغه وقت را روان شو۔ شپه ئے اشنغر ته راؤړله۔ صباح خپل کور ته راغلل او کل یوسفزی چه له دے خبرے خبر شول په هزچا باندے دا خبره بده ولګید له۔ دشمنی ئے سره د سره ورسره بیا تازه شوله او د کابل هغه بدی

واړه وته‌بیا وریاده شوله د انتقام په فکر شول و شب و روز در
این می اندیشیدند ـ

و مخفی نماند چه گیگیانی په هغه وقت کښې له کابله تازه را
غلی وو ـ کنده کوِنه او رمې (ئې) واړه د کابل د پامنې میژونو پسونو
درللې ـ او د ملک حمزه رمې بیحد وعدوې ـ د نامه د پاره ئې دهر
سړی په سر بیل بیل وربے کوتلې وو ـ چنانچه دوئی سل کسه وُو
اوسل پسونه ئې ورته حلال کړی وُو ـ او رنګارنګ طعامونه ئې
ورته پاخهٔ کړی وُو ـ لکه چه ملک احمد ترېے پسته لاړ شهٔ
هغه طعامونه هسې ضائع پاتې شول ـ نورو خلقو وُخوړل او
ملک حمزه هم پوهه شهٔ چه ملک احمد زورور سړے دے او له
ما نه آزرده لاړشهٔ ـ اغلب چه څه بهانه به راته وُکه یو فساد
به راته جوړ که ـ د کابل انتقام به‌را څخې وکاږی ـ پس لازم دا
دی چه پخوا تر واقعې خپل فکر وکړم ـ نور دا مصلحت (ئې)
وکړ چه بادشاه ته کابل لره ورشم ـ په یو طور سره به ئې کوز
را پریباسم را (به) ئې ولم ـ هر ګاه چه بادشاه ځما په لاس شی ملک
احمد به لا چار راته روغ شی او ځما به محتاج شی صلحه مصالحه
به زا سره او که ـ شاید چه ګوندے په دا سبب له بدو د دهٔ
محفوظ پاتے شم ـ

نور په دا خیال ملک حمزه کابل ته لاړشهٔ، ملازمت د بابر
بادشاه (ئې) حاصل کړ او ندویت خپل (ئې) ورته ظاهر کړ ـ
په طریقه د خیر خواهئی د ملک ګیرئی ئې و پیښور ته را روان کړ ـ
یلغه طریق په څو ورځو کښې (ئې) کورته، دو آبے ته را وست ـ
و درخانهٔ خود فرود آورد و بنا بر صلاح ملک حمزه اولاً تاخت

بر سر مردم دلزاک سکنهٔ کالا پانړئی مقرر نموده ـ همدران وقت فرامین متضمن طلبداشت رؤسائے یوسف زی سکنهٔ سم نوشته فرستادند، که به مجرد ورود فرمان خودها را معه لشکر در حضور رسانیده بیایند ـ اما لازم که هیچکس از مردم دلزاک ازین حال آگہی نیا بند تا از موضع خود ها فراری نه شوند ـ

لکه چه هغه فرمان د بادشاه ورغے په هغه وقت په سم بساندے اکوزی او الیاس زی میشتهٔ وُو ـ چنانچه سردار نامی د اکو زی په هغه وقت یو ملک سرابدال بن یحییٰ خواجوزے علاؤ الدین زے وو او بل میر فتح خان بن موسی بائیزے چولیزے وو ـ او د الیاس زیو هسے نامدار څرګند ملک څوک نهٔ وو ـ نور ملک سرابدال او میر فتح خان په بوه نعره سره د اکوزیو د الیاس زیو لښکر راټول کړ بادشاه ته ورغلل ـ بادشاه پرے ډیر خوښ شهٔ ـ دوئی دواړه ئے سرفراز کړل ـ نور بادشاه ملک همزه ته ووئیل چه "د یوسف زیو لښکر هم دا دے راؤرسیدهٔ ـ اوس هر څوک چه سر کښی متمرد خلق ګنړے را ته ئے معلوم کړه ـ چه تاخت پرے وُکړم، تاراج (ئے) کړم ـ" پس له هغه ملک همزه ملک سرابدال او میر فتح خان ته اوویل چه "وایئی څه صلاح کوئی ـ څوک دښمن ګنړئی ـ په چا دوړ د کړو دے ـ" دوئی دواړو ورته وُوئیل چه "تهٔ مشر ئے او بادشاه هم ستا په مقتضا راغلے دے ـ تا کره دے ـ هر چه ستا صلاح ده هغه څمونږ هم صلاح ده ـ" دهٔ ورته ووئیل چه "ما ته خو خپل دښمن تر دلزاکو بل څوک نهٔ ښکاریږی ـ خصوصاً عمر خیل چه په سمه لار کښے د هندوستان پراتهٔ دی ـ هر کله چه څمونږ سوداګر پورته کښته آمد و رفت کوی، دوئی تعدی زیادتی پرے کاندے ـ

همیشه د دوی له لاسه داد فریاد ئے وی۔" نور ملک سرابدال او میر فتح خان ورته ووئیل چه دا خبره خو ربتیا ده ځمونږ خاق هم د دوی له لاسه په ځان رسیدلی دی۔ دست اندازی بد خصلتی خود روی ئے پیشه ده۔

او الحق دوی هم دغه رنګ وُو چه په هغه وقت کښے کاله پانړئی درسته د دلزاکو وه۔ او د عمر خیلو په هغه مقام چه هغهٔ ته په دا وقت د معصوم خان کابلی کور وائی۔ دوه لوئے کلی وُو۔ عین د کاله پانړئی په روډ پورے را پورے پراته وُو۔ او په هغه وقت کښے چه به سوداګر د یوسف زیو د ګګیانیو کښته پورته آمد و رفت کاوهٔ هندوستان ته به تلل راتلل د نیلاب په ګودر به را پورے وتل په جانتړ په سنیاله به ر اغلل د سرغ وړئی په ګودر تر لنډی سیند به را پورے وتل په کاله پانړئی به را غلل۔ پس له هغه به کورونو ته تلل۔ نور به پرے دلزاک داړه کوله او به پرے بلو سیدهٔ۔ او که دا رنګ ئے نه کولےاو په دوی به نه را تللے نور را هزئی به ئے کولے او عمر خیلو مخالفت او د ښمنی لرله له یوسف زیو سره۔ او دا سبب لا سیوا وو چه ملک شیبو عمر خیل په باجوړ کښے د یوسف زیو له لاسه سړ وو لکه چهٔ د دوئی په احوال کښے سابق تیر شوی دی۔ نور تاخت په عمر خیلو مقرر شهٔ۔

پس له هغه بادشاه له تمامی لښکره سره د شپے په قصد د کاله پانړئی ووت۔ یلغرئے وکړ د اشنغر په سیند ور پورے ووت۔ په حصار بلول ورغے چه صبح صادق کیدهٔ په دا را پورے کلی د عمر خیلو ولګیدهٔ شور غوغا په کلی ګډه شوله۔ هغه پورے

کلی هم دا شور واؤریدهٔ ـ چنانچه اولاً ملک جهان شاه چه نامی سردار د عمر خیلو وو، دا غوغا واؤریدله اما دے دا هسے وبوهیدهٔ چه شاید مزرے یا ګیندړے په پورے کلی را ګډ شوے دے څکه دا رنګ شور دے ـ

په دغه وقت کښے ملک د کاله پانړۍ نهایت نیستان ځنګل وو چه بالکل نل ولاړ وو ـ ملک سره واړه یوه درګه وه ـ مزری آدم خوارهٔ په کښے ډیر وو ـ لارے به ئے هم نیولے سړی به ئے آخستل او دغه رنګ ګینډی هم په کښے ډیر وُو ـ

نور ملک جهان شاه زر خپل آس سرېځ کړ ـ ګویند چه د هغه د آس نوم ګُکل بادام، وو نهایت ښهٔ آس وو ـ پرے سور شهٔ او یوه نیزه ئے له تلواره ورسره په لاس واخسته، نور ووت او کلی ته ئے وونیلی چه په جلدئ را پسے را دروئی ـ معطلی مه کوئی ـ او دے له دے حاله بلکه د بادشاه له آمدنی و پیشورته مطلقاً خبر نهٔ وو ـ لکه چه له خپله کلیه ورووت پر پول (پُل) ور پورے شهٔ ـ نوجونه ئے ولیدل چه لور د لوره په کلی ختلی دی قتل اسرات غارت کاندے او بادشاه ورته په عین کلی کښے دننه ولاړ دے، نور ئے نارے وکړے چه عمر خیلو بیدار شئ، نظر پخپل ناموس لرئی مردی کوئی نور ځائے په ځائے کور په کور جنګ ونښت ـ اما جنګ په دوه ځایه کیدهٔ، یو دلته په دے کلی کښے او بل د پول په سر د دواړه کایو ترمیان د ملک جهان شاه د کلی سره، چه د کلی هپه هم را غله ـ اما بله لار مطلقاً نهٔ وه او پول مغولونیولے وو ـ

ګویند چه په هغه وقت کښے رود د کالا پانړۍ ډیر تنګ وو لکه چه اوس فراخ دے، دا هسے نهٔ وو چه عمر خیلو پول پرے

جوړ کړے وو آمد و رفت به ئے پرے کاوۀ او په هغه وقت کښے نسل هم نهایت محکم پیرړه اوړد وو وائی چه اوۀ کزه د ورمے هم په کښے وے ـ الحاصل درسته ورځ تر نمازیګره پورے جنګ وشۀ دا را بورے کلے چه بادشاه پکښے ولاړ وو کل قتل شۀ اطفال عیال بند شو ـ مال غارت شۀ پس له هغه بادشاه پورے کلی ته متوجه شۀ چه پول ته ورغے وئے لید چه جنګ لا سره کیږی نور ئے په خپل لښکر غصه وکړه چه تر اوسه پورے تاسے لانه یئ پورے وتلی ـ دوئ ورته ووئیل چه دا خلق ډیر تیرزن او تورزن دی له ځایه نه خوځیږی ـ امکان پرے د ختلو نشته ـ نور بادشاه پخپله آس ورلغت کۀ په هغه پول ور پورے وت ـ او هکذا نور لښکر هم په بادشاه پسے دغه شان ور وخیژولے ګذاروئه ئے سره وکړل دلزاکو هم شیخ عرفه ونه کړله چه درسته ورځ ئے جنګ کړے وو او کل په غشیو وبشتلی سوری سوری وُو، اما له ځایه ونه خوځیدل بالکل په هغه ځائے قتل شو ـ پس له هغه بادشاه هغه کلی ته ورغے ورننوت، غارت ئے کړ، اما مال مویشی اطفال و عیال د دوئ لا د ورځے تښتیدلی وُو واړه د کړه مار په غرۀ ننوتلی وُو، سلامت پاتے شول او نور ګردو نواح دلزاک چه خبر شوو، واړه وتښتیدل ـ هیچا د عمر خپلو حمایت ونۀ کړ ـ هر څوک ځان ځانی شو ـ

په دغه وقت په درسته کاله پانړئ سره له سضاناتو، او هر چرته د لنډی سیند په کناره تر اشنغره تر شهباز ګړے تر کړه‌مار تر شیر درے تر پنجتاره او په درسته د غرۀ په لمن تر دربنده‌او پورے په دواړو هزارو تر تورېیلے تر لړیکونډیے تر سنګرے تر سو هانه او په درست پښاور دلزاک پراتۀ وو نهایت لوئ تومن وُو ـ

# قضیئه شاه بوړئی زن دلزاک و شجاعت وے

مخفی نماند که قضیهٔ غریبه درین واقعه منکر آنکه چه شاه بوړئی نام عمر خیله دلزاک ښځه وه۔ درستم عمر خیل قبیله ود۔ او د عبدالرحمان عمر خیل لور وه۔ او دوئی دواړه نامدار عمرخیل وُو۔ لکه دا په ابتدا کښے له حاله دصغارت و باوغت ته ورسیده پیغله شوه خدائے (ئے) قوم په لباس مردانه کړ، د نارینه ؤ جامے ئے واغوستلے مدام به له زلمیو سره گرزیدله۔ بے محابا مجلسونه به ئے شپه ورځ له مردانو سره کول په ښهٔ آس به سوریدله۔ ملا به ئے تړله، تیر اندازی به ئے کوله۔ موخه به ئے ویشتله دړے به ئے وهلے په شاهسوارئی په سخت کمانئی کښے عدیم المثاله وه۔ غشی ئے له هیڅ نه ودریدهٔ۔ په جرگه په معرکه په جنگ به حاضریدله مقدمته الجیشه سپاه سالاره د دلزاکو وه۔ او شوهرئے نهٔ کاوهٔله صحبت د ښځو ئے نفرت تمام کاوهٔ۔ نسوم د میړهٔ ورته چانه شهٔ آخستهٔ چه له دے خبرے نهایت ترسیدله گویا دا خبره ورته مرگ وه۔ او له زنا معصومه وه له جماعه ئے زړهٔ سوړ رز او مال دولت شان شوکت ئے ډیر لارذ۔ وینځے مریونه اهل برده ئے ډیرلرل۔

یوه ورځ څو برده وتښتیدل دا نور له یوے ډلے عزیزانو سره ورپسے ووتلهٔ په لارو کښے هر چرته دوه دوه کسه ورته کیناستل داهم له یوه تربرهٔ چه رستم نام وو په یوه لار کښے کینستل چه هغه هم ډیر شدئسه دولت مند ځوان وو۔ نور دوئی دواړو سره وویل چه شپه لویه ده راشئی په وار سره څوکئی کوو۔ نور اول رستم اودهٔ شهٔ۔ دے څوکئی کوله بیداره وه بیا رستم پاڅیدهٔ دا اوده شوله۔

په هغه وقت په رستم شهوت غلبه شهٔ ـ شیطان په خاطر دا
خطره وروستله چه په شاه بوړئ لاس ولګوم مخ ئے وچچم
په ځان ئے بدنامه کړم ـ شاید کوندے په دا خبره ځما لاس
ته راشي ـ اما له دے خبرے عم وبریدهٔ چه که را باندے
بیداره شي سړبه سے که ـ نور د دے وسله توره ئے بالکل
واخستله لرے ئے یووړله پټه ئے کړله او خپل آس ئے تر لاس
ونیوهٔ ځان ئے تیار کړ نور راغے د شاه بوړئ په مخ ئے
خوله ئے ولګوله ـ و ـ ئے چیچله ـ نسے شان ئے پسرے زور کړ چه
دغاښونو پرهاورنه ئے په مخ وشول وینے ترے ووتلے ـ نور دا
له خوبه راولویدله ـ بیداره شوله زر (ئے) تورے ته لاس کړ اما
توره به لاس ور نه غلله ـ او دے ترے دا میان زر په آس سورشهٔ
وتښتیدهٔ ـ د دے له ویرے خپل کلي ته هم لاړ نه شهٔ ـ او
دا به هغه ځائے سوخته شرمنده پاتے شوله ـ شپه ئے تیره کړله
چه صباح شهٔ خجله منفعله کورته لاړله کور او کلي بلکه کل
دلزاک په دا خبره خبر شو او دا له ډیره شرمه نور له کوره
هرګز نه وتله ـ شب و روز دهغهٔ د مرګ په فکر وه پس له
چند ګناه دا خبره په خاطر ورغلله چه که دے سړکړم دا
عیب خوبه له مالاړ نهٔ شي دا شرم اوس په ما پورے شهٔ ـ
او که د دهٔ له ضده بل خاوند وکړم هم د دهٔ پیغور به
عالم ماته راکوی ـ له دے خبرے په هیڅ شان خلاصے نشته ـ
پس بهتر دادی چه دے ځختن کړم چه سکه ترېورسے دے او
شائیسته ځوان دے ـ نور مور پلار ئے په دا حال خبر کړ هغو
زر تر زره اسباب د وادهٔ د دے تیار کړ ـ سندرے ئے وونلے
پوشاک زنانه ئے ورته ور واغستا وهٔ ـ سرئے په کوخیو وڅ ون ـ
رستم لرمئے وادهٔ کړله ـ پس له هغه دا نور په حجابه شوله ـ

د کور دننه کښېناستله - اما جميع آلات حربي تروسلي تر آسه تر چکمي هرچه ددے وُو هغه واړه ور څخه وُو لرے (ئے) نۀ کړۀ په وقت د جنګ ئے له خپله څښتن سره ملاتړله سوريدله - اما مخ به ئے پوشيده وو -

او په هغه ورځ چه بادشاه د دوئی په کلی وخوت رستم د دے څښتن نهايت ازاری وو لکه چه کلے مات شۀ دا راغله ورستم ته ئے ووئيل چه لښکر د مغولو په کلی وخت کشتن زدن کيری پاڅه وړاندے شه دروسه - زۀ به تاپسے دروسم که څوک راپسے راغلل جنګ به ور سره کوم - خاطر جمع لره - دۀ ورته ووئيل چه ځما قابو د حرکت نشه او تۀ دروسه - دے ورته ووئيل چه ته نۀ ځے زۀ به چرته دروسم نور کټ د دۀ (ئے) واحست په څمر کښيے (ئے) دننۀ واچاوۀ او توره ئے وتړله لينده (ئے) په لاس واخستله د ښېر په ورۀ کښيے کښينا ستله او درسته ئے دغشيو د وړاندے واچوله لکه چه لښکرئے خلق په دروازه ورننوتل - دے ګذارونه پرے د غشيو وکړل - هيڅ غشے (ئے) خطا لاړ نۀ شۀ - هر سړے چه به ئے وُويشت -له زغرے له خوله به آزاد وو وت وئے وژله، نور مغلو سره آواز وکړ چه په دا ځير کښيے هسے څه عظيمه بلا ده چه عالم ئے ستې کړ، زاتول شي پس له هغه لوز د لوره عالم پرے راغے څمرئے محاصره کړ ځائے په ځائے په لاسونو سره وشو کاوۀ سورے سورے (ئے) کړ او دائے په غشو لۀ هر طرفه ويشتله سوري سوري (ئے) کړه پرېوتله پس له هغه خلق ورننوت وئے ليدله چه ښځه ده نوز خلق واړه متعجب شۀ -

له دے حاله ئے په دغه وقت کښيے بادشاه خبر کړ - بادشاه

زرسړے وراستاوهٔ چه ګورئی دغه ښځه مه ژوندئ ژوېدئ ئے تر ما پورے راولئی۔ بارے لکه چه هغه سړے ورغے دا بیا مړه وه۔ دم ئے ختلے وو او ښځتن (ئے) هم وژلے شوے وو۔ بادشاه چه له مرګکه د شاه بورئی خبر شهٔ۔ ډیر افسوس ارمان (ئے) وکړو او ملامت (ئے) وکړ چه دارنګ ښځهٔ عالم نهٔ وژنی۔ ژوندئی به مو راته راوستلی وه۔ دوئی ورته ووئیل چه دے دا رنګ غشی ویشتـل چه تـر زغـرے نـه اړ کیدل سـوارِ هسے پوهیدلو چه ګوندے دا سړے دے۔ ځکه وژلله شوله۔ بادشاه او وارو اهل لښکر د دے تعریف وکړ او آفرین (ئے) پرے ووایهٔ۔ او پس له هغه هم هرکله چه به په حضور د بادشاه کښے د عمر خیلو د تاخت مذکور راغے بادشاه به د عمر خیلو د شجاعت خصوصاً شاه بورئی تعریف کاوهٔ آفرین د دوئی خصوصاً د دے په مردانګئی شهٔ اللهم اغفرلها والجمیع المسلمین والمسلمات۔

القصه تر نمازدیګره پورے جنګ وشهٔ تر نماز دیګره دوازه کلیه قتل شو۔ پس له هغه بادشاه په ماتے پسے مخ په شاهباز ګړه او ګړه مار روان شهٔ لکه دے درے کروهه لاړشهٔ نور په مخ کښے شپه راغله نور هورته دیره شهٔ۔ او په هغه مکان چه دے دیره شهٔ اوس پرے د لنګر کوټ قلعه ده۔

او په دغه وقت کښے ملک سرابدال بیا ډیر مخ پیدا کړے وو۔ بادشاه پرے ډیر مین وو او دے په دغه وقت کښ لا زلمے وو په عقل په تدبیر ډیر ښاغلے وو نور دے له خپله لښکره سره بلکه له تمامه اهل افغانو سره بیرته د بادشاه له لښکره علاحده ډیره وو لکه چه هغه شپه تیره شوه صباح شهٔ۔

په څه سبب سره د اکوزیو د الیاس زیو سوه لاس ولګیدل۔ جانبین خلق سره هپه شۀ و زغاست شور شۀ لکه د بادشاه لښکر دا شور واؤریدۀ او د عالمونو کمربندی (ئے) ولیدله په دوئی کښے هم شورشۀ۔ بادشاه لکه دا غوغا واؤریده او دا حال د دوئی (ئے) هم ولیدۀ هیبت زده شۀ وے ګنړل چه اغلب چه پوښتنو فریب راوکړ دخپلو الوسونو تر میانۓ راوستلم ډوب به مے کړ نور زر په آس سورشۀ۔ اوله خپله لښکره په قصد د فرار ووت هورته باهر ودریدۀ۔

لکه چه دا د بادشاه اضطرار ملک سر ابدال ولیدۀ، پوه شۀ چه بادشاه له مونږه داویساه او بے اعتباره شۀ۔ نور پۀ دؤ ورغے د بادشاه سلام ئۓ ؤ کړ۔ ورته ئے ووئیل چه بادشاه تۀ خطره مۀ کوه۔ څمونږ بادشاه ئے مونږ دے غلامان یو۔ تۀ بے غمه په خپل مکان قرار ولاړ اوسه مونږ پوښتانۀ یو څه معامله سو تر میان ده۔ او زمونږ د پښتنو دا رنګے معاملے جنګونه هر کله کیږی۔ دا دستور زمونږ قدیمی دے۔ تۀ ولاړ اوسه مونږ دا ملکان به ورشو سره به ئے پیرته کړو۔ صلحه مصالحه به ئے تر میان وکړو۔

پس له هغه د بادشاه خاطر څخو په قرار شۀ۔ خطرۀ ئے د زړۀ ووتله ودریدۀ او ملک سرابدال آس په پسویه کړ۔ هغه میان ته ورغے۔ اما هغو جانبین سره ډالونه په منګلو نیولی وو، غشئ ئے سره ویشتل۔ ملک سر ابدال برهنه برښئ ورغلے وو څه ئے آغوستی نۀ وو۔ نور دۀ غږ وکړ لاس (ئے) پورته کړ چه مۀ ولئ د بادشاه حکم نۀ دے۔ په دغه وقت کښے ناګهانه یو

غشے د اجل د الیاس زیو له طرفه راغے په ملک سر ابدال ولګیده پریوت ـ نور دواړه طرفه هیبت زده شو ـ حیران پشیمان سره ودریدل ـ لکه د دے حاله بادشاه هم خبر شه ـ ډیر ډیر زهیر په ځائے ولاړ پاتے شه ـ هر دم ئے د دۀ خبر ګیری کوله او ملک سر ابدال بے خوده له ځانه نا خبره په هغه ځائے پروت وو لکه یو ساعت تیر شه سترګے (ئے) وغړولے عالم (ئے) وپیژاند نور ئے پوښتنه وکړله چه دا خلق څه شه ـ چا ورته وویل چه دادی دواړه طرفه پریشان حیران شرمنده ولاړ دی او بادشاه هم متحیر متفکر ولاړ دے ـ دۀ وویل چه ما دیرےته یوسئی ـ او دا دواړه طرفه راؤبولئی نور ئے دے دیرے ته یوړو او مشران د اکوزی واړه ورغلل حاضر شول آخرش دۀ اکوزیو ته وویل چه "اے عزیزانو د الیاس زیو څه په ما بد پیرزو نه وُو بارے په تقدیر کښے زما په باب دا رنګ کښلی وُو اوس تاسے زما نصیحت وصیت واؤرئی چه زما په حیات تاسے دواړه طرفه سره تر غاړه وځئی او دا بدی له زړۀ وباسئی، ما ورته وبخښئی، بد سره مۀ خوښوئی ـ او که مو بیا صبر و نۀ شۀ نور یو څو کسه مشران د یوسف د منډنړ سره کښینوئی ـ هر چه هغوئی زما نیک صلاح کړ هغه تاسے له الیاس زیو واخلئی او نور سره بد مۀ کوئی" ـ

نور اکوزیو ورته ووئیل هر چه ستا امر دے مونږ هغه کوو ـ نور سره دواړه فریقه پاڅیدل تر غاړه وتل، پس له هغه نور دۀ مخ دے الیاس زیو ته کړ ورته ئے ووئیل چه ورونړو تاسے اوس رخصت یئی ـ دیرو ته وز دروسئی ـ نور الیاس زی پاڅیدل دیرے ته لاړل او په ملک سر ابدال نور وقت تنګ راغے

ساه ئې وختله ومړ ـ او بادشاه تر هغه وخته ځورته ولاړ وو
چه د ملک سر ابدال ساه وختله ـ نور دے خائف متوحش شۀ له
ټولی خلق ناویساه شۀ ـ په هغه دم له هغه ځائے وکوچیدۀ مخ
په اشنغر متوجه شۀ ـ په اشنغر پورے ووت دوآبے ته راغے ـ
ملک همزه کره کوز شۀ ـ او هغه غرضونه مطلبونه د بادشاه
چه څه (ئې) په زړۀ ووـ هغه همه واړه ملتوی پاتے شو ـ ملک
همزه آنچه شرائط خدمت و لوازم ضیافت شاهانه بود همه را کما
ینبغی بۀ جا آورده به تقدیم رسانیده به تفضلات خدیوانه سرفراز
گشت بعد ازان بادشاه روانۀ کابل شده زینت افزائے آن بلده
گشت ـ

## مقام پنجم در بیان جنگ مردم ککیانی و مردم دلزاک

مخفی نماند چه په هغه وقت چه د ملک سر ابدال ماه وختله
الیاس زی واړه ناویساه ځنو کورونو ته لاړل ـ لو بادشاه هم
ناویساه شۀ، وکوچیدۀ ـ دوآبے ته لاړ او اکوزیو د ملک سرابدال
جنازه واخیستله کور ته سنګاؤ ته لاړل ـ دلزاک چه د بادشاه
له مخے فراری شوی وُو، واړه راغلل پخپلو کلیو آباد ځنو ـ اما
د دے را پورے کلی مزه څه پاتے نۀ وه ـ چه د کار خلق واړه
سړ وُو زن و بچه اسیر شوی وُو ـ مال مویشی غارت شوی وُو
او (د) هغه پورے کلی خلق اګرچه چیده عالم سړ وو اما بعضے
خلق او مال مواشی عیال اطفال واړه تبتیدلی پاتے شوی وُو، واړه
راغلل په ځائے شول ـ پس له هغه نور عمر خیل سره جرګه ځنو
مشران خلق سوات ته ملک احمد لره مستغاثی لاړل ـ ورته ئے
ووئیل چه "ملک همزه ککیانی بادشاه له کابله راوست بے خبره
ئے پنه مونږ وخیژاوۀ ـ مونږ ئے پرے قتل کړلو ـ او تاخت
تاراج (ئے) کړلو ـ"

ملک احمد چه له دے حاله خبر شۀ او د ملک سر ابدال
له مرګه ئے راؤریدۀ، ډیر زهیر شۀ ـ او نهایت په غصه شۀ ـ
ورته ئے ووئیل چه " دا بد ملک همزه له تاسے سره نۀ دی کړی
له ما سره ئے کړی دی ـ او زۀ هم پرے پوهیږم چه دا بادشاه
دۀ له کابله راوست او په تاسو ئے وخیژاوۀ ـ مقصود (ئے) پکښے
زۀ وُم ـ دا ئے ما ته خپل زور ښایۀ خیرو ځنو، هغه چه وُشو.
آئنده خاطر جمع لرئ دروشئ اوس خپله آبادی کوئ او زۀ هم
په دا څو وقته کښے بنیر لره درغلم ـ تاسے هم راشئ هورته

به سره جرګه معر که ُشو صلاح به وکړو ـ خاطر جمع اوئ ـ

نور عمر خیل را رخصت شول، راغلل خپلو کورونو لره ـ پس تر هغه څو ورځے پسے ملک احمد او شیخ ملی اوغیره ملکان د یوسف د منډنړ سمے ته را کوز ُشو، راغلل اکوزیو لره ـ ملک محمود ابن یحیٰی علاؤالدین زی ته ئے د ملک سر ابدال فاتحه وُکړله ـ ورته ئے ووئیل چه اے مالګوانړیو ګاؤچرانو* تاسے څوک او د بادشاه دربار څوک ـ تاسے څوک وئ چه بے ځما له پوښتنے بے ځما له صلاحه بادشاه لره ور تللئ ـ او د ملک همزه ګګیانی غونډے سړی، چه له قدیمه ځمونږ غلام دے، د دهٔ په خولهٔ وغولیدلئ ـ لښکرے موورسره وکړے عمر خیل موبړے وُوهل ـ او د ملک سرابدال غرندے عزیز سو په کښے باتلهٔ ـ پس له هغه نور راغے بنیر لره ـ هورته واړه سره جمع ُشو ـ او عمر خیل هم ورغلل، جرګه ئے سره وکړله او قسم وعده ئے سره و کړله چه هر چه ستاسے غلیم هغه ځما هم غلیم او ما د ښبې والی ننګ پریښو ور دروسئ لښکر پرے وکانړئ خپل انتقام ترے واخلئ پس له هغه عمر خیل راغلل کورونو لره د لښکر په فکر ُشو ـ

چنانچه بعضے مشران ملکان د عمر خیلو لاړل د اباسیند پورے د هغو ملکونو لښکر (ئے) راوست ـ چنانچه هغه ملکونه د دوئ سابق لیکلی شوی دی ـ او بعضے لاړل د اباسیند راپورے

*مالګوانړی ګاؤچران د مالګو تاجران او ګوجر ناجر یعنی د شاهٔی دربار او سیاست نه نا خبره ـ

له پیهوره راپه دا خوا تر شیردرے تر پنجتاره د لنډی سیند تر غاړے دا لښکرے (ئے) راوستلے واړه سره جمع شولے - پس له هغه په هیئت اجتماعی سره چه حد وعد د لښکر نهٔ وو، دوآبے ته ؤخوځیدل - د سرغ وړئی په ګودر له لنډی سیند پورے وتل و پشاور ته ورغلل او په پشاور هم واړه دلزاک پراتهٔ وُو واړه راټول شُو -

ګویند په هغه وقت چه لښکر د دلزاکو دوآبے ته روان شهٔ - ملک همزه خطونه میر فتح خان بن موسیٰ بائیزی ځولیزی ته او دادی بن پوړل بن فخرالدین یوسف خیل ته واستول چه زهٔ ستاسے ورور یم ننګ دخښی والی راسره و کاړئی - په لښکر راورسیږئی - آخر دوئی دواړه لکه چه په هغه وقت کوز په سمه پراتهٔ وو ننګ د خښی والی(ئے) ورسره و کړ - بے صلاحه بے پښتنے د ملک احمد، له څه قدر سورو د عزیزانو سرهٔ چه هریو نامی سور وو، روان شُو - په اشنغر ورغلل دوآبے ته ور ورسیدل - د ګګیانو ښځو پرے سندرے وویلے - شکرے ئے پرے ولوستلے - دادی میر فتح خان ته ووئیل چه دا د څه شکرے را باندے لونی- فتح خان ورته ووئیل چه الهداده! دا ځما او ستا د سر وینسے دی چه ئے را باندے لونی" - او ملک همزه و میر فتح خان ته مبارکی ور کړه - ورته ئے ووئیل چه "هلهٔ بوائے د یوسفزی میر وے - اوس د درست خښی میر شولے - مونږه خپله میری هم وتاته در کړله - میری درباندے مبارک شهٔ" -

او میر فتح خان نامی سړے سړے وو - سخاوت او شجاعت او په دولت (ئے) نظیر نهٔ لا رهٔ - آبائی اجدادی عالیجاهٔ وو مدام

بهٔ ولایتی غالیچې غوړیدلی وے رنګارنګ طعامونه به ئے پخیدل
او هزارها میلمانهٔ به ئے کیدل د درست یوسف خان وو ـ سلامونه
به ورته کول شو ـ او پس له فتح خانه هم دغه رنګ خانی سرداری
د دهٔ په خلیخانه کښے مسلمه وه، سلام ورته کیدهٔ شهٔ ـ چنانچه
پس له دهٔ بازاخان خان شهٔ او پس له باراخانه ظریف خان خان شهٔ
او پس له ظریف خان محمد خان خان شهٔ علیٰ هذالقیاس درجه به
درجه درست یوسفزے د دوئی منقاد وو ـ اود دادی نوم در اصل
الله داد وو ابآعن جداً اشجع قوم و صاحب جاه بوده چنانچه جمیع
خاندان پوپل در تمامی قوم خښی بسه بهادری معروف بود ـ
گویند که چون میر فتح خان او دادی باجمع سوار براه اشنغر
بتوجه دوآبه شدهٔ چون به وادی حصاره کنده که معروف و مشهور
است در رسیدند ازان طرف سرګین د لال مندړ صدوزی زوئے
چه هرګوره بمانسته زلمے وو او د میر فتح خان او د دادی
اخلاص مند وو مخځ لره وراغے او هغهٔ وادهٔ کړےوو دوئی
ئے راوړ له جنبج ورسره وو نور دوئی دوازو ورتهوونیل چه
مونږه په حمایت د ګګیانو په ننګ دخښی دوآبے ته روان یو
ته چه څه کوے مونږ سره به ځے که کورته به ځے ؟ سرګین
ورته وویل چه له تاسے سره به ځم دوئی جنبج به سره کورته
واستوم که حیات موباقی دے بیا به راشو ـ او که نهٔ وی خیر ـ
نور سرګین دوئی کورته واستوله او دے لهٔ هغه ځایهٔ د دیږ سره
وجاروت و دوآبے ته بیرته لاړ شهٔ ـ

او ګګیانی په دغه وقت کښے بیا تبتیدلی وُو ـ مال مواشی
ګدے ئے بیولے د کنځل خیلو بغول خیلو په طرف په غرهٔ کښے
سنګر شوی وُو ـ او د لښکر خاق واره په لیمه وزی پروت وو او نیمه

ورځې په دوآبه کښې ډیر ځر ګند. او مشهور ځائې دے او ملک همزه هورته یوه لویه خیمه او شامیانه اودرولے وه. شان شوکت ئې د امرا وو. او نورو ملکانو هم هر چا سره په قدر خپل سره خیمے ودرولے وے چه ګګیانی په هغه وقت لا تازه له کابله راغلی وُو خوږې خصلت اسباب (ئې) لا د کوچیانو وو او په دغه وقت کښې محمد زی لا په کامه په ننګر هار میشتهٔ وُو. او ملک همزه له دیوُ ځه مدد معاونت غوښتے وو. د محمد زو لښکر هم ور لره راغلے وو.

الغرض د ګګیانیو لښکر هم عظیم جمع شوے وو. اکثر په کښې سوارهٔ وُو کم پکښې پیاده وُو. زر سوارهٔ خویوانې د ګګیانیو وو. چه همه عراق سوارهٔ وُو. سزترهابه پټ وُو. نور د دِلزاکو لښکر په جییعت تمام سره له ښوره وروخوزیدهٔ. په ګبل بیله ورغے. د ښورتر سینده ورپوریوت هورته ئې نور صفونه وتړل بےتحاشے نیمه ورځې ته ورغے. لکه ګګیانیو ته د دوئې لښکر نمایان شهٔ د ګګیانیو لښکر هم ورتـه راووت. په دغه ځائې کښې سره مقابله شو. جنګ دغشیو ئې سره آغاز کړ. لکه دلزاک واړه په غشیو مړنی وُو. د ګګیانیو لښکرئې اکثر ګایل کړ. نور میر فتح خان او دادی او سرګین او ملک همزه پرے ورګډے کړے ور ننوتل په دغه طریق نور لښکر هم په یو وار پرے راغے جنګ ئې سره ښهٔ وکړهٔ د نیزو د تورو د ګذارونو هیڅ صرفه ئې ونه کړله. لکه حق د مردئې و دلاورئې وو هغه هسے شان تورے ئې وکړله آ فرین په وارو بانده. اما دلزاک بیحد و عد وُو. د سورو د پیاده و حساب ئې نهٔ وو. صفونه لښکر ولاړ وو. دوئې په کښې ونښتل پریوتل واړه

وُ سړل ـ او دلزاک هم په کښې ډیر وُسړل ـ اما لکه دلزاک ډیر وو هیڅ کمے پرے وُنه شهٔ ـ او هغهٔ زر سوارهٔ د ګګیانو چه واړه عراقی سوارهٔ پټ او پنجیان* وُو او په هغه کښې تیرسو** سوارهٔ مکه خیل وُو ـ هغه هم واړه پریوتل وسړل، او مکه خیلی په هغه وقت ډیر دولتمند ځرګند تورزن خلق وُو ـ تر نورو ګګیانیو دوئی واړه بناغلی ممتاز وُو ـ بارے په هغه جنګ کښې چه واړه قتل شُو ـ او کونډے یتیمان خلق ئے پاتے شهٔ نور ډیر کمزوری او لږ خلق شهٔ ـ

ګوینډ چه په دغه جنګ کښې ګګیانیو محمدزیو او یوسفزیو هیڅ صرفه وُنه کړله ـ خصوصاً دادی ملیزی چه لکه حق د بهادرئی وو هغه هسے وکړ ـ اما لکه د ګګیانیو بخت برګشته وو، چه نهایت متکبر مغرور شوی وُو، فتحه ئے نصیب نهٔ شوله واړه خلق برے طوفان شهٔ ـ او که یونیم سړے چرته تښتیدلے وو په هغو پسے هم دلزاکو تعاقب وکړ او وئے وژلل او په سنګر ئے د ګګیانیو د ملک احمد له ملاحظے هیڅ غرض وُنه کړ، چه په ملک احمد او په واړو یوسفزیو به بده وُلګیږی چه ګګیانی او یوسفزی سره ورونړه دی ـ چرے نه چه بیا دا هسے مونږ ته وائی چه اګرچه که ځما نه ګګیانیو نه زړهٔ بد وو اما ستاسے څه رخ وو چه د دوئی په ناموس لاس مو ولګاؤ ـ نور له هغه ځایه

---

* په اصل مسوده کښې هم داسے لیک دےخو صحیح لغت "پنهان" کیدے شی ـ

** درے سوه ـ

وگرزیدل - خپل مری ژوبل نے واخستل راغلل د اشنغر د سیند په غاړه دیره شول شپه نے هورته تیره کړله - صبا روان شو پېښور اره راغلل هر چه د پېښور لښکر وو هغه هور ته پاتے شه - او هر چه د کوز ملک وو، هغه بالکل را روان شه راغیے، د سرغ وړئ په گدر تر لنډی سیند راپورے ووت کاله پانړئ ته راغے - هرچه د کالاپانړئ د سمے لښکر وو هغه لاړ د هند په گدر پورے شه خپلو کایوته لاړ شه - نور دلزاک په دے فتحه سره هرگوره ډیر مغرور شه -

او دیگر مخفی نماند هغه وقت چه میر فتح خان او دادی د گګیانیو په حمایت بے اطلاعه د ملک احمد لاړل، ملک احمد خبر شه دا خبره پرے نهایت بده ولگیده - په غصه شه - نورے زر په تلوار میر احمد صدوزے ورپسے واستاوه چه زر ورشه دوی پسته راوله - او دا ورته ووایه چه د گګیانیو د کابل بدئ مو هیرے شوے او د ملک همزه د دوآبے چارے مو له زړه ووتلے، تاسے څوک یاستئ او څه غرض مو دے چه د گګیانیو په حمایت تللی یاستئ - دلزاک څما په اجازت ور غلی دی ځانونه عبث به وژنئ پسته را:روسئ -

گویند لکه میراحمد چه ور ورسیدهٔ هغه ساعت د گګیانیو او د دلزاکو جنگ تیار وو، صفونه جانبین سره آراسته وُو - د جنگ ورځ وه د میراحمد رسیدهٔ و میر فتح خان او دادی ته وُونهٔ شه - نور هسے کناره ودریدهٔ لکه جنگ سره شروع شه په میر احمد ننگ دخښی والی غلبه شه بےاختیاره نے تر هر چا اول په دلزاکو گده کړله گذارونه نے وکړل - په کښنے پریوت وُمړ، اوبه دغه

وقت کښې چه میر احمد ورګډوله - د دادی پرے نظر وو، وئے ویل چه دا څوک وو - چا ورته ووبل چه میراحمد صدوزے وو - چه مانک احمد په تاپسے راستولے وو - تاسے (ئے) پستنه طلب کړی وئ - بارے لکه چه په داهسے حال وزسیدهٔ تاسے (ئے) بیا نهٔ مونډلئی ننګ د خښې والی پرے غالب شهٔ ور ګډه نئے کړله، په کښې پریوت ومړ - دادی ورته وویل چه صمد رحمت پرے باندے ننګیالے دے ته وائی - نور دادی هم ورګډه کړله په کښې پریوت ومړ او کژدنه ئے کړے وه، هسے ترے پاتے شوله -

ګویند چه تر دے جنګ مخوا یوه ورځ دادے له خپله خسره (سخر) سره په لارے چرته تهٔ، ورته ئے وویل چه دادیه! په جنګ کښې هوش په کاردے، سربازی بے محله په کار نهٔ ده- هره چار په تابو نه ده - مبادا چرے نهٔ وی چه څما لور کنډه کړے، اودهٔ ورته له شرمه هیڅ غږ نه کوهٔ اوپه لارے سره تلل ناګاه له. لارے بیرته ارے بو سړے ؤو چه دوئی ئے هیڅ نه پیژندهٔ او سندرے ئے له ځانه سره ویلے - اتفاقاً (ئے) دا سندره هم په کښې وویله -

که د نورو نیرے لنډے — د دادی نیزه ده لویه
که هرڅو سوارهٔ ډیرشی — د دادی ورتلهٔ خوبویه

نور دادی و خپل خسر (سخر) ته وویل چه "دا سندره د واوریدله ! وایه چه اوس زهٔ نام ناموس خپل چرته پټ کړم - چه نوم مے په جهان څرګند شهٔ". هغهٔ ورته وویل چه دغه هسے ده

توکل په خدائے کړه ـ خپل ناموس ته ګوره، هرچه تقدیر دے هغه به کیږی ـ

الغرض چون ملک احمد و سایر یوسفزی از قتل ګګیانی و محمدزی و یوسفزی خبر شده بسیار محزون و غمگین گردیدند و عرق غیرت و رحمت ایشان درحرکت آمد و ننګ خښی توب دامنګیر شد ـ او هرچا سره په ملک احمد ملامت کاوۀ چه تۀ د درستِ خښی بلکه د درست سړین سردار ئے د ګګیانیو شرم ستاوو اوتا د یوۀ همزه په سبب دا هوسره خپل قام آواره کړ، دا تالره مناسب نۀ وه ـ او د میر فتح خان او د دادی او د میر احمد او د سرګین عزیزانو هم شب و روز ملک احمد ته استغاثه کوله، داد فریاد به ئے کاوۀ، ویل ئے چه مونږ به دا خپل ورونړه عزیزان دلزاکو ته پرے نږدو ـ که ته ئے ګتے فهوالمراد ـ او که نۀ وی مونږ به پخپله هونبره غټ غټ دلزاک ووژنو چه خود به فتنه شی ـ ملک احمد ورته وویل چه تاسو وار وکانړئ ځما دا ورونړه عزیزان خپل هیر نۀ دی، اما داوګورم ورته بهانه غواړم او د ګګیانیو د سا بقیه خلق مشران هم راغلل، ملک احمد ته ئے فریاد وکړ ـ عجز خواری خپله (ئے) ورته ظاهره کړله، ملک احمد دلاسه استمالت د دوئی هم ډیر وکړ ـ ورته ئے ووئیل چه تاسے اوس دروسئ خاطر جمع لرئی که خدائے کاندے د درست خښی انتقام به ترے وکاړم ـ نور ګګیانی ترے رخصت شو، لاړل، او ملک احمد شب و روز د دلزاکو په فکر وو، بهانه طلب شۀ، او دلزاک هم هرګوره په دا فتحه سره مغرور بدمست شول لافے شافے (ئے را) واخستلے، دست اندازی، بدخوئی (ئے) له یوسفزو سره پرسیره کړله او په

هغه وقت یوسفزی واړه په بګیاړی پراته وو، ځائےپر ځائے د دوئی کلی پراته وُو۔ هرچرے پرے دوئی میشته وُو۔ اتفاقاً یوه ورځ د یوسفزیو ښځو د بګیاړئ په رود جامے وینځلے نوری ئے غوړولی وُو، او بربندے ناستے وے۔ ناګاهه یوه ډله دلزاک د کالهپانړئ چه بګیاړئ لره تالی وُو په هغه لارے په دوئی باندے راغال۔ یوۀ حرامزاده له هغے ډلے وربیل شۀ، ورغے بو پړونے (ئے) له هغه ځایه راواخست رائے وړ، هغو ښځو ورته نعرے کړے چه کم بخته دلزاکه دا پړونے ځمونږ مه وړه۔ او کنه که ملک احمد حیات وی داپړونے به په ډیرو وینو بدل شي۔ هغه بدبخت دلزاک دوئی ته ښکنځل وکړل چه ستا مور له ملک احمد سره فلان دمان کړم۔ احمد به ځما څه وُکه ا۔

آخرش هغه دلزاک هغه پړونے یوور لاړشۀ۔ دا خبره هر چرته خوره شوه۔ ملک احمد خبر شۀ۔ په ملک احمد دا سخته ولګیدله، وےوَیل چه "که د درست خښی قصاص مے له دلزاکو وُنه کیښ زۀ به له سلطان شاه نۀ یم"۔ پس له هغه ئے اولس راټول کړ جرګه معرکه ئے سره وکړله د لښکر په فکر شۀ۔ او د دلزاکو په استیصال پۀ بیخ کنئی پسے شۀ۔

ګویند چه په هغه وقت موسیزی ګګیانی لـه ویرے د یوسفزیو له هغه سبب چه ملک حسن بن چنګا او ملک شبلی ابن توری موسیزی یوسفزی د میرزا الغبیګ په وقت په کابل وژلی وُو۔ دوئی یوازے هورته په کابل پاتے شوی وُو۔ او دا نور ګګیانی کوز دوآبے ته راغلی وُو۔ او څه قدر اتمان خیل هم ورسره په کابل کښے پاتے شوی وُو۔ او تر کلانی په لغمان

کښیے او محمدزی په ننګرهار کښیے پاتے وُو۔ او محمد زیو په هغه وقت کښیے ملک او ولایت لا نهٔ لارهٔ۔ نور ملک احمد دا خبره صلاح کړله وئے ویل چه که موسیزیو هر چند بد له مونږ سره کړی دی اما صلاح داده چه مونږ هغه د دوئی تقصیرعفوه کړو۔ صاحبه صلاح ورسره وکړو را وئے بولو۔ چه دا د خښی هم خدائے تر سره کا۔ او اتمان خیل ما بقیه او ترکلانی او محمد زی هم د راوستاو دی، چه دا مهم لوئے سخت عظیم پیښ شوے دے۔ نور دهٔ شیخ ملی له یو څو کسو مشرانو یوسفزیو سره تجویز کړل کابل ته بئے رْوان کړل، ورته ئے وُ ویل چه اول له دے طرفه په دوآبه ورشه، ګګیانو ته ووایه چه ملک احمد او هغه واړو یوسفزیو د موسیزیو تقصیر عفوه کړے دے۔ اوس تاسے یو څو مشران راسره کابل ته دروئی چهٔ دوئی له کابله راولو، او اتمان خیل او ترکلانی او محمد زی هم واړه راولو، چه دا مهم خمونږ هر چا سره شریک دے۔

نور شیخ ملی وغیره دوآبے ته روان شُو۔ ورغلل ګګیانو ته ئے دا احوال وُوایهٔ۔ ګګیانی هر ګوره خوشحال شُو۔ نور یو څوکسه مشران د ګګیانیو هم ورسره روان شول۔ ننګرهار لره وراغلل۔ دا پیغام د ملک احمد (ئے) محمد زیو ته ورساوهٔ۔ چه لښکر راسره وکانړی محمدزیو لښکر قبول کړ۔ پس له هغه لغمان ته لاړل۔ دا پیغام د ملک احمد (ئے) په ملک سرخانی بن شمو مالارزی او په ملک بلو خان برمشاهزی ترکلانی رسانید تقاضائے لښکر از ایشان کردند، بعد از ان به کابل رسیده موسیزیو ګګیانیو ته ورغلل او دا پیغام د ملک احمد (ئے) ورساوهٔ۔ ورته ئے وُویل چه " هغه واړه بدئی موستاسے عفوه کړے دی

او واړه خونونه مو خپل درته بخښلی دی ـ اوس تاسے را دروسئ په خاطر جمع سره چه د خپی ننګ سره ترسره کړو" ـ

لکه چه موسیزیو دا پیغام واوریدو نهایت ډیر خوشحال شو چه ملک احمد مو ګناه عفوه کړ، او بیا شیخ ملی غوندے میړهٔ ئے راستولے دے نور واړه په اتفاق سره خانه‌دار راوګوچیدل ـ او اتمان خیل (ئے) هم ورسره راروان کړل، راغلل لغمان لره اما ترکلانیو ورسره لښکر ونهٔ کړ هیڅوک ورسره رانهٔ غلل. نور دوئی راغلل ننګرهار لره محمد زیو ورسره اخلاص وکړ په زور ورسره روان شول راغلل په بګیاړئ دیره شول ـ

ګوینډ چه په هغه وقت کښے د محمد زیو ملک مستقل عللحده چرته نهٔ وو ـ تبعاً طفیلاً به له نور چا سره اوسیدل ـ چنانچه په کابل کښے له ګګیانیو سره وو ـ لکه ګګیانی چه له کابله دوآبے ته روان شول تر ننګرهاره دوئی هم ورسره وو ـ پس له هغه په ننګرهار کښے هورته ترے دوئی پاتے شو ـ

غرض چه کاټلنګ له هغه ځایه دوه درے کسروهه وو ـ شیخ ملی لاړشهٔ، له ملک احمد سرئے هورته ولیدل ـ ورته ئے ووئیل ـ چه لښکرمے ډیر درته راوست ـ ورسته په بګیاړئ دیره‌دے، د مهمانئی فکر صباح ته بویه ـ نور ملک احمد حکم وکړ او هر طرف خپلو کلیو ته (ئے) سړی واستول چه صباح ته هر څوک سره د مهمانئی تیاری وکانړئ ـ

آخرش هرچا کلی په کلی تیاری د مهمانئی وکړله ـ هر څه

ئے سره سرانجام کړل۔ د دوئی د آمدنئی په انتظار شول۔ و مخفی نماند چه په هغه وقت چه شیخ ملی د لنبکر د پاره کابل ته لاړ شۀ ملک احمد دلته هم د لښکر د گردآورئی په فکر شۀ۔ تمام یوسفزی د سوات د باجوړ د سمے د اشنغر سره لـه شرکاؤ همسایه ؤ۔ چنانچه اتمانخیل او گدون او کنبار او راهـوانړی او رنړی او کامی او سواتی او شلمانی وغیره واړه ئے راټول کړل۔ د کاټلنګ خواؤشا بچپاو کلیو کښے (ئے) دیره کړل۔ د شیخ ملی په انتظار شۀ او دا هونبره عالم سره جمع شۀ۔ چه حساب ئے په خدائے زده۔ او دلزاک د کالاپانړئی هم چه په دا خبر شو چه شیخ ملی کابل ته د لښکر د پاره لاړ شۀ او دلسے هم ملک احمد گردآوری د لښکر کاندے، دوئی هم نـوز خپل سړی و پښور ته او پورے هزارے ته او مانګړاو ته او اکوړئ او توریلے ته او راپورے تر سیند تر پیهوره تر شیردرے تر پنجتاره د لنډی سیند تر غاړے پورے واستول۔ هومره لښکر ئې راوستل چه حد وعد ئے نۀ وو۔ او واړه ئے د شهباز ګړے تر ورسک د لاندے د مقام د رود په غاړه اوږدۀ سراسر دیره کړل۔

او پو شیده نماند، چه د دلزاکو ملکونه خولا ډیر وُو۔ اما لکه چه دوئی هرګوره شریر، مفسد، بد معامله خلق وو، همسایه په کښے د یوه طغ خلق هیچرته نۀ وُو۔ شریکان واړه محترفه، کمین توک وو۔ هم هغه واړه یو یو کور وو۔ امان ډمان مطربان په کښے ډیر وُو او نهایت عزیز وُو۔

الحاصل د دلزاکو لښکر نسبت د یوسفزیو و لښکر ته نهایت ډیر وو۔ بنا برآن از راه نخوت وغرور یوسفزیو ته ئے بکنځل

کول، لاڑے شاڑے ئے وهلے، او پیغوروته به ئے ورته کول چه یوسفزی خوارو زار، نتلی له کابله راغلل مونږ ووسااتل ملک مو ورته ورکړ، اوس ئے له مونږ سره درشتی او مقابله واخستله۔ جنگونو ته راته تیار شو۔ میندے به د واړو* ۔ لکه گگیانی مونږ ست و نابود کړل۔ دغه هسے به دوئی هم نیست نابود کړو او زن و بچه به ئے اسیر کړو۔

لکه دلزاکو واوریدل چه شیخ ملی راغے لښکرے ئے له کابله راوستے، په بگیاړئی پراته دی۔ نور اندیښمند شو۔ سره ئے وویل چه صباح که دا لښکر او د ملک احمد لښکر سره یوځائے شی، زور قوت به ئے سره یوشی۔ وهل به ئے مشکل شی۔ خو صلاح دا ده چه صباح وتی مونږ د ملک احمد په لښکر وولکو، ووئے وهو۔

دا خبر چه گگیانیو ته ورشی، خود به گگیانی وتښتی۔ چه گگیانیو ضرب زمونږ** لیدلے دے۔ نور چه صباح شهٔ، هغه د بگیاړئی لښکر لا یه ځائے پروت وو۔ او د کاټلنګ لښکر لا هیڅ خبر نه وو۔ او ملک احمد، او خواؤ شا کلی د هغه ځائے واړه د بگیاړئی د لښکر د میمانئی په کاروبار مشغول وو۔ په دغه وقت کښیے دلزاک له شهباز گړے ور روان شو هپه شوه۔

گویند چه دلزاکو رمئی د میزرو هم ورسره تر ملاتړلے وړے وے، چه د یوسفزیو بند به پرے تړو، راولو به ئے، اوله یوسفزیو به ئے مطلقاً خطره نهٔ کیدله۔

---

* دلته کنځل وو۔ ** اصل: کښیے ځمنږ دے۔

ملک احمدخبر شهٔ چه د دلزاکو لښکر راغی۔ نور خلق د کاتلنګ و غونډیو ته ورغلل. د دلزاکو د لښکردوړے ئے له ورایه ولیدلے۔ لکه دهیے په شان په دؤ ورغاښتل ۔ نور ملک احمد او شیخ ملی هم زر خپل لښکر درو بست تیار کړ صفونه ئے وتړل پیاده ئے د وړاندے کړل، او سوارهٔ ئے ورپسے کړل ۔ اما په هسے عنوان سره چه د سورو نیزے د پیادهؤ په شا لګیدلے ۔ او اتماخیلو کړوی جوړے کړے وے، لکه باړئی* هسے په مخکښے نیولے وے۔ او د پیاده ؤ په مخ کښے تللے ۔ په دا شان سره آهسته آهسته قدم په قدم روان شول، عین د ګنډر په ګدر سره دواړه لښکره مقابله شو۔ جنګ د غشیو (ئے) سره پورے را پورے آغاز کړ۔ اما لکه د دلزاک د سرخیرے** خلق دړ ورسیدل، او انبوهه لښکر لا د ورستو وو۔ او یوسفزی واړه په جمع ور رسیدلی وو۔ نورئے سره ووئیل چه وقت دادے مبقت په کار دے۔ او که نهٔ وی د دلزاکو لښکر درنګ په درنګ زیاتیږی۔ پستنه به جنګ بیا ورسره مشکل شی۔ نور یو دوه سوه سوارهٔ په بل ګدر ورپورے وتل چه سرغنه د هغو دا درے سوارهٔ وو۔ یو سلیم ابن معدود ابن پوپل۔ دوئیم سید، دریم جوکل ابنان دمخک ابن پوپل چه دا درے سوارهٔ اشجع زمانه، رستم وقت وو۔ نور په یکبارګی دوئی واړو په دلزاکو را وخیژولے ۔ د دلزاکو د سر خیرئے وګرزیدله، ماتے (ئے) کړے، او له دے طرفه انبوهه نور لښکر هم ور پورے وت ۔

---

* ډال، سپر ۔

** سرخیرے، سرپره، هراول ۔ مقدمه الجیش ۔

او پـه دغـه میان کښې دګـګیانیو لښکر هـم د سُهیل له طـرفه را ورسیدل ـ نور لور د لوره په دلزاکو وخیژولےـ د سرعلم ئے د دلزاکو مات کړ ـ لکه دا ماتے په انبوهه لښکر د دلزاکو ورغلله، انبوهه لښکرئے هم له بخه مات شهٔ ـ هیچا ئاسردو ایسته ونهٔ کړله ـ هر څوک سره ځان ځانی شول ـ وتښتیدل، اکثر خلق تیوړی لـه او توربیلے تـه لاړشهٔ، او واړه کلی ئے لـه کاله‌پانړئی، ترلنډی سینده تر پیهوره، تـر پنج‌تـازه، تر شیردرے، تر شهباز ګړے، تر کړه ماره هم په هغه ورځ وتښتیدل، د آب سیند غاړے تـه منازو تـه لاړل ـ هیڅ سړے یو د بل له حاله خبر نهٔ وو ـ

ګویا چه هغه ورځ په دلزاکو د قیامت راغلے وهٔ ـ او د درست خښی سوارهٔ تر منارے ورپسے وُو ـ د قتل، د غارت د آسرت تقصیر هیچا وُنهٔ کړ ـ له منارے ترے پستنه را وګرزیدل اکثر هم په هغه ورځ، او څوک صباح ته کاټلنګ ته پستنه را غلل، او هر چه پیاده خلق د خښی وُو هغو درے ځلور کروهه تعاقب په ماتے پسے وکړ ـ نور مانده شُوـ پستنه را وګرزیدل ـ او د دلزاکو په کلیو را سر څو، لکه دلزاک تازه متمول خلق وُو ـ او هیچا څه یستلی نهٔ وُو ـ په الجو په غارت په آسرات هر چا خوا یخه کړه ـ هر څوک سره مارهٔ شُو ـ

بارے ملک احمد او شیخ ملی لا په ابتدا کښے حکم کړے وو، چه بر ده د دلزاکو هر چا چه وینول د هغو د وی ـ اما د اصیلو د احرار و بند مه کوئی ـ او په آل په عیال ئے غرض مه لرئی ـ چه بیا پوښتانهٔ دی ـ نور د دهٔ له ویرے، اکثرو خلقو لا په لارے بند آزاد کړ، او بعضے خلقو تر کوره را وست ـ

اما لکه ملک احمد پرے خبر شه هغه ئے هم ترے خلاص کړل آزاد (ئے) کړه۔ او بعضے خلقو چه ښائسته ښځے (ئے) په لاس کښیوتلے وے، وے غوړولے، پتے ئے کړلے، په نکاح (ئے) کړے عورتے (ئے) کړلے۔

چنانچه ازان جمله یوه د ملک هندال ابن علی خان اکوزی خواجوزی شموزی والده وه چه نهایته جمیله عفیفه ښځه وه چه علی خان په بند را وستلے وه، په نکاح کړے (ئے) وه۔ ځنې زهمن د دهٔ له صلبه ترے متولد شوی وو۔ بو موسیٰ دویم عیسیٰ دریم هندال، ځلورم کامران وغیر ذالک۔ هم دا رنګ ډیر وو۔

ګویند که خان کجو ابن منک قره چه په دغه جنګ کښے لا تازه ځلمے وو، په دلزاکو پسے ئے تر پرتے منارے تعاقب وکړ۔ هلته بائیخان نام دلزاک وو، چه د کاله پاړڅی بلکه د درست دلزاک سردار وو۔ له خان کجو سره په یوه برابر بیښ شهٔ، او اهل عیال (ئے) د وړاندے وو او د دغه بائیخان یوه پیغله ښائسته لور وه چه ښخوا تر دے وقت خان کجو ترے غوښتلے وه۔ نهٔ ئے ورکوله۔ په دغه وقت کښے چه بائیخان، خان کجو ولید۔ ورته ئے نعرے کړے۔ "اے خان کجو! مونږ له خپلے بدخوئی خوار جلا وطن شو، ومړلو، ورک شو۔ اوس د خدائے د پاره کړه، دا خپل انبکر راځنے وچاربا سه، منعه ئے کړه۔ او که نهٔ وی دا قام مے چه لږ څه پاتے شوے دے، دا هم په اباسیند کښے ډوبیږی، غرقیږی۔ او هغه ځما لور چه اول تا راځنے غوښتله او ما نهٔ درکوله هغه هم اوس

دا ده را سره ده۔ ما و تا ته درکړله۔ بارے خو چه له دے مهلکے خلاص شم۔ او يو مکان ته ورشم، نور به ئے درته وادهٔ کړم"۔

خان کجو چه دا نعره د دهٔ واؤريدله، دلسوزی ئے پرے وشوله۔ خپل لښکر ته ئے غږ وکړ چه اے قامه! بس کانړئ، پريږدئ، را وجاروزئ۔ هر چه وشو هغه وشو، نور پرے غرض مه کوئ، چه بيا پوښتنهٔ دی۔ خان کجو اکه په هغه وقت بيا نامدار څرګند سرداو وو په ويل ئے هر څوک سره ودريدهٔ، منعه شول۔ نور له هغه ځايه درست لښکر را وجاروت په بيرته راغے او دلزاکو د منارے* د پيهور په ګذر پوريوتل، خپلو ملکونو ته لاړل، او د پيښور دلزاک له هزارے بيا په بيرته را وګرزيدل، په بله لار کورته را غلل۔

ګويند چه په دے جنګ کښے اکثر پورے قوم دلزاک وس۔ چه د سر ځيرئ اول خلق دوئ را رسيدلی وو، جنګ هم اول پهٔ دوئ راغے۔ اکثر دوئ قتل شو۔ او په دے جنګ کښے ډيره بهادری هغو دوو سوو سورو کړے وه، چه اول تر هر چا پورے وتلی وو۔ خصوصاً سليم خان** ابن مندو خان ابن پوهل او سيد او جوکا ابنان دلخک ابن پوهل چه دوئ دړے وارو سورو غوندے پس له دادی ابن پوهل په درست پوښتانهٔ کښے نهٔ دی تير شوی۔

---

* د زروبئے زوړ نوم مناره وو، هلته هم ګذر وو۔

** دا نومونه په صفه ۱۳۷ باندے، سليم ابن مندود ابن پوهل اؤ جوکل ابنان دمخک ليکلی دی۔

چه هر یو رستم وقت وو۔ او پس له دوئی میر او پیر علی د میرک ملیزی ایسوریزی زهمنو هم په دے جنگ کښے ښه ټوره کړے وه۔ آفرین پرے باندے، او پس له هغه تر اوسه پورے په هر دور کښے د پوپل په اولاد کښے هم درے څلور سوارهٔ صف شکن پیدا کیږی۔ اما په دے وقت کښے اوس دمے څرګند سړے په دوئی کښے څوک نشته، مګر باما د جوکا مذکور زوئے د پوپل نمسے چه د واړو ملیزیو سردار وو۔ او درست صورت ئے له جراحتونو ختلے وو۔

پروس کال چه سنه الف و اثنان و ثلثون (۱۰۳۲ھ) وو، په ناحقه، په غلا د شپے د ملیزیو لهٔ لاسه ومړ۔ او دا دود دستور د یوسفزیو بلکه د درست خښی دے، چه د جنګ په ورځے د نیک فالئی او د شګون د پاره د پوپل د کور سړے به ئے وړاندے کاوهٔ، او الله تعالیٰ به فتح نصرت هم دوئی لره ورکاوهٔ۔

او خان کجو ابن ملک قره ابن پیرکے صدوزے منډړ، که در حال طفولیت به همه خصائل حمیده و شمائل مرضیه موصوف بود، از بسے قابلیت و لیاقت علامت امارت در جبین او مبین بود۔ هر کسی مېتر صد آن بود که هر آئینه به اوج بلندی خواهد رسید، و بر مسند صدارت خواهد نشست، و والد بزرګوار وے ملک قره ابن پیرکے هم عالیجاه والد تبار صدوزے منډړ وو چه سردار پس له ملک احمد او له شیخ ملی دے وو۔ او په ځوانانو عزیزانو هم پر دوئی غالب وو۔ او په دولت، په ثروت کښے تر واړو منډړو زیات وو۔ او والده ئے عاقله مدبره صالحه عفیفه بی بی مونده نامیده۔ چه دے غوندے ښځه بله په افغانستان

کښیے نهٔ ده تېره شوے - او دوئی سره سکهٔ پینځهٔ ورونړه وُو - اول سنید، دویم میر داد، دریم خان کجو، څلورم بومے، پنځم جانے - اما جانے لا په زلمی توب کښیے د سوات په جنګونو کښیے مړ وو، او دا نور څلور واړه ژوندی وُو، چه هر یو د ریاست قابل وو او هر یو ډیر نامدار څرګند سړے وو - او خان کجو په دغه جنګ کښیے لا کچه زلمے وو - د صورت، د سیرت، د شجاعت، د فراست نظیر ئے نهٔ لارهٔ - او ملک احمد او شیخ ملی او غیره اعیاُن د خښی د دهٔ په هغه وقت کښیے حرمت، عزت ډیر کاوهٔ - په هر کار په هر مصلحت به ئے پوښتیدهٔ، له صلاحه د دهٔ بیرون نهٔ وُو - اما مع هذا دهٔ هم بے مرضئی د ملک احمد او د شیخ ملی کار نهٔ کاوهٔ - په هر کار کښیے د دوئی تابع وو - او هر چند چه ملک احمد او شیخ ملی به ورته ویل چه سردار د تماسی یوسفزیو بالاستقلال علی الانفراد ته شه سونږ به دِ سمد معاون اوسو، دهٔ قبوله نهٔ کړله -

او پس له جنګ د دلزاکو چه دهٔ ډیره توره وکړله - دے نهایت مشهور شد - و بعد ازان با جمیع مردم یوسف زی به خانهٔ ملک بائیخان دلزاک به هزاره رفته دختر وے را به اعزاز تمام در نکاح کرده به خانهٔ خود آورد - ابراهیم خان نام خلف وے، که قائم مقام وے شده از بطن او متولد شده بود، محبوب ترین زوجات اولین منکوحات وے او بود -

# مقام ششم

در بیان قسمت کردن شیخ ملی ممالک ماخوزه و بلاد مفتوحه درمیان اقوام خښي و وفات شیخ ملی و ملک احمد و آغاز سرداری خان کجو و برپا شدن فتنهٔ غوریه‌خیل همراه ایشان۔

گویند هر گاه چه دلزاکو جنګ بائلهٔ، وتښتیدل، له آب سینده پورے وتل، را پورے ملک له آب سینده ترے واړه خالی شهٔ۔ کل خښي په کاټلنګ سره جمع شهٔ۔ اول ملک احمد د کابل لښکر لره سهمانی مکافه ورکړه۔ پس له هغه ئے تقسیم د ملکونو آغاز کړ۔ بخرے حصے ئے جوړولے۔ په دا میان کښے د ټولو زیو سردارانو شیر وکړ۔ ټولو وویل چه "خانه! موږ خو ډکه کاسه د اوګرے غواړو۔ موږ ته خو هسے ملک را کړه چه په اوګره ماړهٔ شو"۔ او مراد له دے نه اشنغر وو۔ نور ملک احمد ورته وویل چه معلومه شوه چه اشنغر غواړئ۔ ور دروشئ اشنغرے درکړ۔ په تاسو د مبارک وی۔ بارے په تاسو هم لازم دی۔ چه ځان د خښي ځاورم زوئے وګڼړئ۔ په هره بنه بده د خښي حاضر ئ، نور دوئ پاخیدهٔ، سلامونه ئے ورته وکړل ورته ئے وویل چه "خانه! په موجب د دے چه اَلْاِنْسَانُ عَبِیْدُ الْاِحْسَانْ دے موږ، ستا غلامان یو۔ هر چه ستا حکم دے، موږ به هم هغه کوو، ستا له اطاعته به هیچرے بیرون نهٔ وزو"۔

پس له هغه ګګیانو غیر وکړ، چه "خانه! موږ جوړ به ذوآبه پراتهٔ یو۔ څمونږ خود هم هغهٔ ملک دے۔ بارے موسیزی

ورستو راغلی دی، فراخور حال د دوئی‌هم څه ملک رانه عنایت شی"۔ ملک احمد د دوئی التماس هم قبول کړ۔ دوآبه او نصف باجوړ له دانشکوله تر عنبره لاشوړے، تر ناوګئی تر چار منګه چه اول د خلیاو بخره وه، داۓ هم ورلره ورکړهٔ دوئی هم پاڅیدل‌سلامونه‌ۓ وکړل ډیر خوشحال ښو۔

پس له هغه نور محمد زیو ګګیانیو دواړو سره ورته ووئیل چه "خانه دا ملکونه واړه تا خپله کتلی وُو، څمونږ هیڅ استحقاق په کښے ثابت نهٔ وو۔ بارے چه تا خپله کرم بخشی مهربانی وکړله ملکونه د راکړل۔ موږ د واړه غلامان شو۔ اوس دا نور ما بقیه ملکونهٔ واړه، چنانچه نصف باجوړ له بابقرے تر جندوله، تر بنجکوړے، او درست سوات بونیر چمله تر تینوله او دربته سمه تر نوښهره تر مرغ وړے، د لنډی سیند ترغاړے پورے او درسته د اباسیند غاړه دا د ستاوی۔ اما اتمان خیل او ګدون او کښار او روانړی لوکانسی. اوغیره اقوام متعدده د ستا سره وی تهٔ ورته ملکونه ورکړه"۔

ملک احمد فراخور هرکدام از اقوام مذکورین هم هریو لره ملکونه ورکړل۔ واړه ۓ رضامند کړل۔ هر څوک سره خپله خپله بخره خوشحال شو۔ نور هرچاسره فاتحه وکړه۔ هر څوک سره رخصت شو۔

ګګیانی لاړل په دوآبه او په هغه نصف باجوړ آباد شول، او محمدزی لاړل ننګرهار ته په تلوار خانه‌وار راوکوچیدل، راغلل په اشنغر آباد شول۔ او یوسفزی د اشنغر، له اشنغره را پاڅیدهٔ

په سمه په نورو خپلو ملکونو متوطن شول او تر کلانے اکرچه د خښې دریم زوئے وو بارے چه په لښکر رانغے د دلزاکو په جنګ حاضر نۀ شۀ، حصه د ملک (ئے) دوئی لره ورنۀ کړله ـ پس له ډیرو کالونو چه جنګ د شیخ تپور هم وشۀ، دوئی له لغمانه راغلل، په باجوړ میشت شو ـ چه ذکر د دوئی به خود پخپل محل کښے راشی ـ

گویند که مِن بَعد آن روزگار ریاست ملک احمد در تصاعد شده روز به روز در ترقی گشت ـ و تمامی خښے بلکه تمامی افغان مطیع و منقاد او گشتند و آوازهٔ ملک گیری و غلغلهٔ ممالک ستانی وے در اکناف عالم منتشر شد ـ و بعدازآن در اندک سالها شیخ ملی به عارضهٔ بشری ازعالم فانی به دار باقی خرامیده و در موضع غوربندے د سوات دلوے لارے په غاړه چه و دمغار ته دروسی په سمه هواره مزکه مدفون شۀ ـ غفرالله‌تعالیٰ‌له' ولجمیع المومنین والمومنات ـ او گرداگرد د قبر (ئے) د چنا رونے ولاړے دی ـ اوس ترے چاپیره لرئے کاے هم میشت دے ـ قبر د دۀ هورته نمایان دے ـ

گویند چه شیخ ملی نهایت متدین، متقی، قائم‌اللیل، صائم الدهر سړے وو ـ هرچرته چه به تۀ، خدمتگار به کوزه د او داسئه ئے ورسره گرزوله ـ او دبے ساتحت د ملک احمد، مقتدا د درست یوسف مندړ وو ـ دے د هرے چارے د هر مهم غمخور وو ـ همګی کلی، ملکونه تپه په تپه کور په کور، د دۀ په دفتر ختلی وُو ـ او دۀ ویشلی وُو ـ او تراوسه پورے هم د دۀ هغه تقسیم په یوسف مندړ کښے جاری دے، ځکه د یوسفزیو چه

چرے په مزکه سره مباحثه شی، سره ووائی چه "دا تاله شیخ ملی راوړے دے" - یعنی شیخ ملی در کړے دے، چه دعوه بئ کوے غرض دا چه د دهٔ ورکړے تراوسه منظور دی ۔

او عمدة لمحققین برهان السالکین اخند درویزه قدس سره په تذکرة الابرار والاشرار کښے هم راوړی دی "که شیخ ملی در مرض موت خود گفته بود ۔ که من در عمر خود انصرام مرام اهل حوائج گاهے به طمع دنیاوی نه کرده ام، بلکه خالصاً لله کرده ام، پس اگر دراین سخن راست گو باشم تقسیمات ملکها و تعینات حدودها که فیمابین یوسفزی کرده ام تا روز قیامت باقی بادا و اگر دروغ گو باشم از میان ایشان مرتفع باد ۔ انتهیٰ کلامه ۔

لهٰذا تا هٰذالیوم تقسیم او ثابت و برقرار است و اولادِ وے در اینوقت بعضے در یوسفزی و بعضے در هندوستان است ۔ و بعد از وفات شیخ ملی پس از یکسال ملک احمد نیز حیات مستعار خود را به مالک حقیقی سپرده از دارِبےمدار به عالم پائیدار نقل نمود ۔ و در سوات در موضع مذکور متصل شاه راه، در جائے که قدرے پسته و بلندی دارد مدفون گشت غفرالله له والجمیع المسلمین والمسلمات ۔

پهٔ درست یوسفزی کښے بلکه په تمام خټی کښے کلی په کلی، کور په کور به هر چا بانده دهٔ ساتم وو ۔ او د دهٔ په شان عالیشان ممالک ستان په درست پښتون کښے بل پیدا نهٔ شهٔ ۔ او که شهٔ بیا خان کجو شهٔ ۔ او د ملک احمد ډیر زهمن وو ۔

اما څرګند په کښې دا دوه وُو - بو الهداد او دویم اسمٰعیل - او دا دواړه زهمن د ملک احمد په حیات بیا زلمي وُو - نور د دوئی دواړو په سردارئی سره مخالفت واقع شهٔ، کینے حسد سره واخستهٔ او نور د ترونو ترہوروونو سره ہرے وهل، همیشه سره ئے جنګونه کول - چنانچه د کار سرے په کښې پاتے نهٔ شهٔ - واړه وُمړل نور اولس سره جرګه شهٔ - وُئے ویل چه دوئی واړه ناقابله شو په کور کښې (ئے) سره ووژلل - دکارسړے په کښې پاتے نهٔ شهٔ - اوس بویه چه هسے څوک قابل سړے وی چه لائق د ریاست وی، چه دا ریاست ورته وُسپارو - په دا کښې هرچا سره فکر وُکړ - بیله خان کجو بل څوک ورته لائق او قابل سړے د دے کار بکاره نهٔ شهٔ - زیراکه از عهد خوردګی آثار بزرګی درناصیئه او هویدا بود - او په تمام قبائلو د مندړ کښې په قوت په شوکت غالب وو، او په وروڼړو عزیزانو هم ډیر وو - بیا واړه دولتمند، شجاعت شعار وُو - نور واړه الوس په اتفاق سره، مسند درپاست و دهٔ ته مفوض کړ - اوملقب (ئے) په خان کړ - خاصو عامو هرچا ورته خان وایهٔ - لکه دے لائق او قابل وو، کار ئے ورځ په ورځ په ترقئ کښې شهٔ - تا په حدے چه اوج ارادت ته ورسید - تمامی اهل افغانستان (ئے) مطیع و منقاد وګرزیدل - چه ذکر به ئے پخپل محل کښې راشي -

او له هغه تاریخه سرداری د ملک تاج الدین له کوره ووتله آبائی اجدادی دفتر (ئے) بابلهٔ، او بعضے خلق اوس هم د دهٔ په خیلخانه کښے نامی شته دے - چنانچه یکے از انجمله سودا نام چه د ملک زیور ملک دے او ډیر موقر معمر دے نن ورځ چه سن هجری زردرے د برش (۱۰۳۳ھ) مطابق ۱۶۲۳ء

دئ حیات دے۔ و اولاد د شاہ منصور ابن العم ملک احمد نیز در این وقت چند کس در هندوستان در خدمت نورالدین محمد جهانگیر بادشاه هستند۔

القصه چون خان کجو بر مسند ریاست و امارت متمکن شد در محافظت ملک ماخوذه و حراست بلاد مفتوحه و انتظام امور ملکی و بندوبست آلوسی از ملک احمد فایق تر گشت و جمیع سکنه دیار افغانستان و دهگان و گوجر، و هندی و نیلابی و سواتی و گبری و تینولی و کفرهٔ کوهی مطیع و منقاد او شدند و آباد ملک وو، نور خلق و کثرت لشکر از وقت ملک احمد زیاده گشت۔ چنانچه هر چا سره ښهٔ ښهٔ اسبابونه ښهٔ ښهٔ سلیحونه* ښهٔ ښهٔ آسونه لکه لایق د سرکار د امیرانو د سرکارونو وی، بهم ورسول او دا خبره خو په تمامی عالم کښې ښکاره شوه چه د خان کجو په وقت یو لک نیزے د یوسفزیو وے۔ یعنی یو لک سوارهٔ پیاده نیزه‌باز وو۔ او چه گردآوری به ئے د لښکر له نورو الوسونو هم کوله، تر دا به هم زیات شهٔ۔

گویند که خان کجو در بعضے مهمات لشکر از یوسفزی و گگیانی و محمدزی و ترکلانی و ازتوابع خود، چنانچه از اتمانخیل و گدون و کښار و گبریائی و مهیار و ماندوری و وردک، و روانړی و کانسی، و سرکانړی و ابدال و ترین و مشوانړی و بیتی و کاکړ و د شیارزی و لونی و تورانی و روشانی و ختک و اقوام دهگان از سواتی و متراوی و آوان و گوجر وغیره جمع

* وسله۔

نموده یک لک و چهل هزار کم و بیش بر آمد۔ غیرازین که مردم دلزاک هزاره و مانسگراؤ و تربیله و حسن ابدال وغیره نیامده بود۔ باوجود یکه وقتے که ایشان را می طلبید نیز حاضر می شدند ـ

---

## جنگ شیخ تپور

از جملۀ آن جنگهائے نامی که خان کجو کرده است یکے جنگ شیخ تپور است که باغوریه خیل کرده است۔ و آن جنگ بسیار مشهور است و شیخ تپور نامی مقامیست در قصبۀ شهر پشاور که آن مقام در آنجا بس معروف است ـ

گویند که در عصر خان کجو مردم داؤدزئی قوم غوریه خیل به یکے حادثه از حادثات از مردم مهمند و خلیل از موضع ترنگ و قلات و مقروقره باغ که وطن اصل غوریه خیل است جدا شده آمده، در ولایت یوسفزی استقرار گرفتند۔ و به خان کجو وغیره اعیان یوسفزی عجزو پریشانی خود ظاهر نموده، استدعائے ملک معاش خود کردند۔ خان کجو وغیره التماس ایشان به سمع قبول اصغا نموده، مواضع چند که قابل الزراعت و کثیرالربیع بود، درنواحی کاله‌پانړئ و بگیاړئ به ایشان مرحمت داشته ایشان در آنجا سکونت پزیر شدند۔ تاوقتیکه مردم مهمند و خلیل نیز به یکے واقعه از اوطان مذکورۀ خود بیجا وجدا شده آمده به پشاور رسیدند۔ و ملک پشاور را به استعانت و استمداد میرزا کامران ولد ظهیرالدین بابر بادشاه از دلزاک فارغ نمود ایشان نیز به

علاقۂ قرابت موقیت از کالہ پانړئی و بکیاړئی برخاسته آمده در پشاور همراه ایشان سکونت ورزیدند ۔

و منشاء آن جنگ چنین بود کہ چون مردم مہمند خلیل از وطن اصلی مذکورۂ خود بہ پشاور آمدند در آنوقت در پشاور و مضافات آن جمیع اہل دلزاک بہ نہایت غالب و توانا بود ۔ ایشان را جائے معاش نہ دادہ، همیشہ مزاحم احوال ایشان می شدند۔ آخرش مردم مہمند و خلیل کہ ایشان را غوریہ‌خیل می گویند ناچار شده روانۂ کابل گشتند و استغاثہ از دست دلزاک بہ میرزا کامران بردند ۔ میرزا کامران التماس ایشان را قبول داشتہ با افواج قاہرہ همراہ ایشان روانہ شده بہ سرمردم دلزاک تاخت آوردند ۔ چنانچہ بعد از جنگ، بسیار اکثر دلزاک بہ قتل رسیدہ و باقی فراری شدہ و براہ کوہ جاتړ و قرمیزی از دریائے اباسیند عبور شدہ با دلزاک ھزارہ و مانګراؤ متوطن شدند ۔ ازآن وقت تا الیوم غوریہ‌خیل بہ جائے دلزاک در پشاور آباد شدند۔ و چونکہ شہر پشاور بہ سرِ راہ شاہ است ۔ او تمامی کاروانونہ پرے باندے کښتہ پورتہ آمدورفت کول ۔ او محصولونہ بدرقائی بہ ئے اخستلے او ملک ہم ښۂ آبی وو ۔ فصلونہ زراعتونہ ئے ښۂ کیدل او سوداګرئی ہم کولیے ۔ نور زر پہ څو مودہ کښے دولت مند شول ۔ او پہ سړیو ہم ډیر شو نہایت غلبہ شوکت (ئے) پیدا کړ ۔ خصوصاً خلیل، چہ پہ‌نہایت اوج موج شو، او پہ دغہ وقت مہمند اکثر پہ ننګرہار پراتہ وو ۔ او خلیل وارہ کوز پہ پشاور میشتہ وو ۔ او سراسر ہمہ ملک پشاور علی وجہ الاستقلال و الانفراد د خلیلو وو ۔ لہ پشاورہ تر ډکے، تر کرپے، تر آخورہ، تر جانقرہ، تر نیلابہ، تر نوښہرہ،

تر شیخ تپوره، تر دوآبې، دا ملک واړه د خلیلو وو، بلکه د درست غوریه خیل په دغه وقت کښې ملک، بازید خان ابن محمود خلیل اسحاق زېې محمد زی عیسیٰ زی سالیزې وو- چه ډیر عالیشان وو، او په نصیرالدین محمد همایون بادشاه (ئې) ډیر مخ وو- تمامی (ئې) مطیع فرمان بردار وُو- خلیل هم واړه صاحب جمعیت شهٔ- ښې ښې جامې (ئې) اغوستې، رنګ رنګ طعاسونه ورته پخیدل، تبیلې تبیلې آسونه ورته ولاړ وُو، ساز لباس، طور اطراړونه د هر یوهٔ جوړ د خانانو د امیرانو شه- پهٔ درست یوښتانهٔ کښې د دوئی غوندې عیاش ملک* بل څوک نهٔ وو- بذل، سخا، ایثار، عطه، آدمیت، مروت په کښې ډیر وو- هر یو رستم صفت، یوسف صورت وو- چه څوکاله په دا شان تیر شول، زور قوت ئې په کمال شهٔ- عداوت، قدیمی (ئې) دامنګیر شهٔ- د یوسفزیو دښمنی چه خلیل (ئې) په اوایل د هندو راج په دره په جوړ کښې وژلی وو، ورپه یادشهٔ- نور بدخوئی (ئې) امه یوسفزیو سره آغازه کړله- بدی دست اندازی (ئې) پیشه کړله- په کاروانونو په سالونوئې باوسیدل، دهاړې به (ئې) پرې کولې د هندو راج بدئی بمه ئې ورته یادولې، خصوصاً چه ژمې به شهٔ، سوارهٔ به د شپې وُوتل په پایابونو د سندونو به پورې شول د ملکنډ خوالره به ورغلل، هورته په کندو په خارخوړیو کښې به پټ شو لکه چه صباح به شهٔ د بهرام ډیرئی د کودینکې، د وړئی، د کړئی، د پشاو، او د نور خواؤ شا د دغه ګرد نو مال مواشی به ورغلهٔ را به ئې وستلهٔ، او پیاده به ئې. هم دغه رنګ ورتلل د ملکنډ د سلطان شهی د کاجکلې او د دغه ګرد

---

* د ملک په ځائې ملکان پکار دی-

نواح په غرهٔ کښې په پټ شو، درسته ورځ به ئې تیره کړله بیګناه تـه بـه ئې هـر څـوک چه د لـرګو د وښو سرې ورسته بیاموندل اسیر به ئې کړل، پسېور لره به ئې راوستل - او دا رنګ دهاړے بـه ئې پـه کاله‌ېانړئ په بکیاړئ هم شب و روز کولے شپه ورځ (ئې) پرے یوه کړے وه - او دا رنګ پورته لارے د کـړپے د خیبر (ئې) هم نیولے چه د یوسفزیو کاروانونه به کښته پورته په هغه لارے تلل، تاراجول ئې -

قضاءً یوه ورځ د یوسفزیو کاروان پورته کابل ته روان وو - چه پـه کـړپه د خیبر ورغے، د خلیلو دهاړه پرے ولګیدله - هغه کاروان ئې وواهـهٔ غـارت (ئې) کـړ او یو دوه بنائسته هلکان (ئې) د میر رستم سکه مشران ورونړه، د عمر ابـن سیدو ابـن تـانـړی یـوسفزی اکـوزی ابـازی زهمن وو، چـه ئې پیژانـدل، قصداً او عمداً ئې وُوژلل، او د تـانـړے کـور په یوسفزی کښے ډیر لوئې څرګند کور دے او عمر، هم پـه دغـه وقت نـامی ملک وو، او میر رستم هم ورستو بیا د ابازیو نامدار ملک وو او په دے وقت کښے هم د ابازیو ملکان د میر رستم دواړه زهمن دی یو کمال خان، بل جلال خان، او دا د اشنغر ابازی له قدیمه د اشنغر په سر کښے میشتهٔ دی - لکه چه اوس دی، دغسے اول وُو، د تانړے په وقت دواړو ابازیوله میانه دغه مینه د دوئ وه -

القصه اهل کاروان هغه دواړه هلکان را واخستهٔ اشنغر ته ئې ېلار کـره راؤړل ېلار پرے ډیر جزعه فزغه وکړله - نـور ئې دفن کړل، پس له هغه ئې هغه خون آلوده جامے د زهمنو واخستے

خان کجو لره ئے منارے ته یوړے او خان کجو په دغه وقت
کښیے په لوړه مناره میشته وو۔ چه بیزاد خیل پس له استیصاله
د دلزاکو واړه په دغه ځائے میشته وُو۔ نور عمر هغه د زهمنو
خون آلوده جامے ورته د وړاندے واچولے ژړائے ورته ډیره
وکړله، ظلم تعدی د خلیلو (ئے) ورته بیانه کړله۔ خان کجو
پرے هرګوره ډیر زهیر شۀ۔ قهر غصه ور لره ډیره ورغله اما
از راه مصلحت (ئے) برداشت وکړ۔ و عمر ته ئے نصیحت آغاز کړ
چه عمره! هرچه کوے په ځائے کوے، ظلم درباندے ډیرشوے
دے۔ ګرم نه ئے۔ ستا خو لړمون وو۔ اماماته هم تر زامنو کم
نه وُو۔ دا درد د دوئی چه اوس وماته ورسیدۀ دا رنګ به بل
هیچاته نه وی رسیدلے۔ بارے صبر بنۀ څیز دے۔ ګوره د خدا
کاروبو ته۔ ولے چه خلیل ډیر قوتمناک اولس دے که نو
لښکر پرے وکړم او انتقام ترے خپل واخلم نهایت مبکی به
مو وشی۔ ولے چه ګګیانے محمد زے له خلیلو سره په پوله پروت
دے والله‌اعلم چه لښکر راسره په راستئی وکا که وُنۀ کا! پس
علاج (ئے) دا دے چه اوس ورته غم وخورو۔ خلیل خود شریر
فقنه انګیز خلق دے، نن صبا به په ګګیانیو یا محمد زیو
ویلوسی۔نور به ئے ټپله هغه دښمن شی۔ ماته به التجا وکا، ځما
داؤ به پرے سرشی۔ بهانه به مے ورته جوړه د درست خښنی لښکر
به پرے وکړم۔ انتقام به خپل خاطر خواه ترے وکاږم۔ په
دا شان د عمر دلاسه، استمالت (ئے) وکړ۔ کورته ئے راواستاوۀ
او خلیل له خپاؤ بدو هرګز نه اوریدل، شپه او ورځ ئے په
یوسفزیو بوه کړے وه، مدام به دغه رنګ خان کجو لره د دوئی
له لاسه فریادونه را تلل او د دۀ به ورته ورځ په ورځ قهر غصه
زیاتی کیدله۔ او دا قهر و غصه (ئے) هم ورته وه چه په هغه وقت

چه دوئ میرزا کامران له کابله راوستلے وو۔ د یوسفزی تاخت (ئے) هم په خاطر وو۔ چنانچه هغه وقت د ژمی وو ۔ دوئ پیښور د اشنغر د میند پایابونه هم ورته کښل تالاش ئے ډیر کاوۀ، او یوسفزی هم په دا حال خبر شول ۔ خوف و بره ئے ترے ډیره ؤشوله اما خواست الهی بل رنګ وو، چه څه واقعه وشوله، میرزا کامران له پیښوره زر په بیرته وګرزیدۀ ۔ پسته کابل ته لاړ شۀ ۔ هغه مطلب د دوئ ؤنه شۀ ۔

پس له هغه په لږ مدت، ملک محمد خان بن سلطان ګګیانے چه نهایت متشرع، متدین، مدارالمهام مرجع خاص و عام وو، په څه سبب سره پیښورته لاړ وو۔ قضاءً د ملک بازید بن محمود خلیل مسجد ته ورغے، په نمانځه ودریدۀ ۔ په امام پسے ئے نیت وتاړه، په هغه وقت کښے یارکے نام زکریازے او ولی نام زکریازے دواړه ورغلل په عین صلواة په حین قیام کښے (ئے) بے وجه ډ ورستو په چاړه ؤ واهشه شهید ئے کړ ۔ زهمن ئے ورستو خبر ؤشو، له دوآبے ورپسے ورغلل له هغو خون آلودۀ جامو سره ئے راواخسته دوآبے ته ئے راوړ دفن ئے کړ ۔ دا چاره په دوست ګګیانی ډیرۀ سخته شوله ۔ کورپه کور هر چا کره ماتم شۀ ۔

ګویند چه په هغه وقت کښے د تمامی ګګیانیو سردار بالانفراد ملک شیخو بن خواجی وو او تمام ګګیانے ددۀ مطیع او منقاد وو ۔ او په نصیرالدین محمد همایون بادشاه ئے هم ډیر میخ وو۔ پس له هغه ملک شیخو د ملک محمد خان شهید زوئے د پلار له هغه خون آلوده ؤ ، روجامو سره خان الخوانین خان

کجو ته را روان کړ۔ او ملک خواجو لالەزے او ملک آدم لالەزے دواړه هم نامی معتبر روشناس ملکان وُو، ور سره ئے واستول۔ چنانچه اوله دوئی درے واړه په اشنغر ورغلل، ملک خضر خان او ملک بیګی محمدزی ته ئے استغاثه وکړله۔ دا حال ئے ورته وُ وایه۔ دوئی دواړو ورته وُوئیل چه تاسو اول خان کجو لره ورشئی۔ چه دے د درست خبتی خان دے او د تمام ننګیالے دے۔ دا مهم به مو د دهٔ په اقبال سره تر سره شی۔

نور له هغه ځائے درے واړه سره روان شُو۔ خان کجو له ورغلل۔ هغه د ملک محمد خان خون آلوده جامے(ئے) ورته د وړاندے واچولے، او د خلیلو ظلم تعدی ئے بیانه کړله۔ خان کجو هر ګوره غمګین شهٔ وئے ژړل، او د ملک محمد خان په مرګ (ئے) افسوس وکړ۔ نور ئے ورته ووئیل چه د خلیلو مهم په ما باندے اوس واجب شهٔ۔ زهٔ به ئے کوم۔ بارے تاسے دا جامے هم دا هسے درسره واخانرئی،* ملک سرابدال او ملک بارا خان اکوزی لره ئے یوسئی۔ داد فریاد ورته وُ کانرئی چه دئی هم په دے فکر شی۔

نور ملک خواجو وغیره درے واړه روان شول ملک بارا خان او ملک سرابدال لره ورغلل، هغه جامے ئے ورته د وړاندے واچولے، ژړا فریاد د خلیلو له لاسه ئے ډیره ورته وکړهٔ۔ دوئی دواړه هم ډیر پرےمتاسف متالم شُو۔ ورته ئے ووئیل چه تاسے اوس وردرومئی بیغمه شئی، دا مهم خمونږ هسے مونږ به ئے کوو۔ بارے تاسے هم په تعبیه** د لښکر اوسئی، مونږ که

---

* واخلئی۔ ** تابیا۔

خدائے کا، زر ورغللو۔

مخفی نماند که ملک خضر خان محمدزے اشنغرے سردار اعظم و ارباب معظم تمامی محمدزے بود۔ او نهایت عالیشان صاحب شوکت وو، او ډیر عاقل مدبر وو، تمامی محمد زے (ئے) فرمان بردار وو۔ او محمد سعید خان پسر وے نیز مانند وے سردار کثیر الاقتدار بود۔ و بعد از محمد سعید خان در هر دور کرسی به کرسی در اولاد وے سرداز نامی شد، و متصرف تمام محمدزی می بود و ملک بیگی بن بهرا نیز سا تحت از ملک خضر خان صاحب حکم و خداوند قوت و حشمت بود۔ ملک سرابدال ابن موسیٰ ابن نیک پائے،* یوسفزے اکوزے خواجوزے برادر زادهٔ شیخ سنیا نیز مقابل خان کجو بود، اما خان کجو سردار مندړ بود۔ و ملک سر ابدال سردار یوسفزے بود۔

اما لکه له قدیمه سرداری خانی د یوسف د مندړ بلکه د درست خښتی د مندړ وه، خان کجو خان خانان وو، اما تحت له خان کجو د ملک سرابدال سیال په درست سره بن کښے نه وو۔ او اولاد ملک سرابدال مطاق نه وو، مگر له آم** ولدے (ئے)

* نیک پی۔

** آم ولد۔ د فقے په اصلاح کښے هغے وینزے ته وائی چه د خپل مالک نه۔ زاوزاد شوے وی، دا وینزه بیا مالک نشی خرڅولے، او د مالک د مړیدونه پس آزاده شی، چا وارث ته په میراث کښے نه رسی۔

یوزوے متولد شوے وو بختی نام، چه نهایت محسن وو، او اولاد د هغهٔ تر اوسه پورے شته دے، او شیخ سنیا مذکور چه عم د ملک سرابدال وو، له اعاظم اولیاء او له کبائرو مشائخ د یوسفزی وو۔

او ملک بارا خان ابن موسیٰ بوبل اکوزے بائیزے برادر میر فتح خان که ذکرِ وے بالا مسطور شده است، نیز عالیجاه سردار وو۔ په قام قبیله ډیر ممتاز وو۔ په توره سړے وو، تاحدے چه په وقت د جنگ به همیشه د دهٔ دوه طرفه د آس واګے د ملک احمد په حکم نیولے شوے۔ چه نهایت سرښور (سرزوره) ذوالحال وو۔ محل ئاملا (ئے) نهٔ کوت، که زر کسه دښمن وو، ددهٔ خو ترلیدو پورے بازی وه، نور یکتنها به هم پرے ورتهٔ، اواستوګه ئے پر کاله‌پانړی وه۔ او غله‌ډیر څخه ئے لوے بازار وو، د سرغ وړئ ګذر د لنډی سیند هم د دهٔ وو، محصول (ئے) دهٔ لره راتهٔ اوُ دے چه پیرِ معمر شهٔ په کاله‌پانړئ وفات شهٔ قبر ئے هورته دے۔ اولاد ئے په یوسفزیو کښے تر اوسه شته دے، واړه صاحبِ وقار دی۔ او یو زوئے ئے سلیمان نام تر اوسه پورے (۲۰۳۰ھ) شته دے۔

بالقصه خان کجو بعد از ترخیص ملک خواجے وغیره آدمان خود به ملکان یوسف و مندړ فرستاده به مکان مشخص و معین طلبیدند، چنانچه به مجرد رسیدند آدمان خان کجو و ملک بارا خان و ملک سر ابدال اکوزے خواجوزئے و خدائیداد بن یارے ابن میرِ احمد صدوزے که ویرا بادشاه می گفتند، ملک بین ابن خدائیداد صدوزے که ما تحت از خان کجو صاحبِ جرګه بود

وغیر هم هکذا از اعیان بسیار به موضع معهوده نزد خان کجو آمده حاضر شدند ـ

جرگه معرکه ئے سره و کړله ـ ووئے وئیل چه غوریه خیل نهایت زورور اولس دے، باوجودے چه له مونږه لرے پراته دی ـ مهم ډیر سخت دے می باید چه د یوسفزیو، د محمد زیو، د ترکلانیو، د ګګیانیو، د څلورو واړو پلارو لښکرے ورلره جمع کړو ـ پس له هغه ورته وړاندے شو ـ اما لازم دادی چه اول مونږ تهیه د لښکر وکړو، لاړ شو، په اشنغر ډیره شو ـ پس له هغه به د ښخې لښکر ے بچله راتولیږی، راپسے به را دروړمی ـ بارے لازم دی چه هر څوک د ناموس کور له ځانه سره بیائی ـ چه حیله پۀ جنګ کښے هورته بیا څوک ونۀ کاندے ـ او هر چه د ملاتړ سړی دی ـ خواه اصیل، خوا غلام، خوا ساوو، خوا شریک، هغه د واړه په لښکر دروړمی او هر څوک چه پاتے شو، او ځان ئے له دے لښکره وغړاوۀ د هغۀ خوله تالا ـ او هر مشر د فراخور د حال د خپلو وابستو متعلقانو د لښکر خرڅ له ځانه سره واخلی ـ

نور په دا باندے هرچا سره فاتحه وکړله ـ هرڅوک متفرق شول، کوروئو ته لاړل، او خان کجو او ملک سرابدال، او ملک بارا خان، او ملک خدائیداد، او بادشاه وغیره په نیک وقت ډیرے له کوره وویستلے، کوچ ئے وکړ لاړل ـ په کاله پانړئی د بره شول ـ خیمے شامیانے (ئے) ودرولے هر څوک چه خبریدل وزپسے راتلل، په کاله پانړئی ورسره ډیره کیدل، تنبوان خیمے (ئے) ودرولے ـ په لږو شپو ورځو کښے هونبره لښکر جمع شو، لکه

چه د یوهٔ بادشاه وی ـ او خان کجو له دغه ځایه نور خطونه محمدزیو، ګګیانیو، ترکلانیو، اتمانخیلو، ګدنو، سواتیو وغیرهٔ ته واستول ـ چه زر په تلوار هر څوک له لښکره سره خپل ځان اشنغر ته رارسوی ـ

ګوبند هغه وقت چه جرګه کیدله ملک جوکے او کریمداد الیاس زے، سالارزے، چه دواړه نامی سرداران وُو، هم حاضر ووـ نور دوئی دواړو په هغه وقت خان کجو او ملک سر ابدال ته عرض وکړ چه تاسے خو ځمونږ د الیاس زیو په حال خبر یئی چه اوس په دا ژمی قزان شاه او ن سلطان اویس له لښکره سره‌را بانده خټلی وُو ـ درے ځلور کاله ځمونږ (ئے) ووهل او نور کلی مونږ او مایزیو ترے به خوارئی په توره خلاص کړه قزان شاه و مونږ ته راخیلمه دے، جوړ په ځمونږ راته ناست دے ـ که مونږ په لښکر وُ زو، ځمونږ کلی به بیا ووهی ـ پس امید چه مونږ له لښکره معاف شو ـ

خان کجو او ملک سرابدال ورته و وئیل، چه ښه خبره ده، ستاسے خدمت دادے چه له قزان شاه څخه ځان وساتئی ـ که له خیره راغللو یو سهم ځمونږ دا هم دے ـ بارے کرم علی ابن فتح خان الیاس زے سالارزے له څه قدرے خلقو سره راسره کړئی ، چه غوریه خیل زرهٔ ور نه شی ـ هسے ونهٔ پوهیږی چه الیاس‌زی ورسره نشته ـ نور کرم علی جوړ هورته حاضر وو، له څه قدرے خلقو سره ئے ورسره کړ ـ نور دوئی رخصت شو ـ کورته لاړل ـ

ګوبند چه کرم علی په توره د سید جوکا پوپل خیل

مقابل وو، او نهایت عالیجاه صاحب دولت وو۔ و مخفی نمانـد چـه
قزان شاه ابن سلطان اویس ابن سلطان پکهل ابـن سلطان جهانگـر
کشر زوئے وو، چـه لـه لاسه د یـوسفزیو له سواته تښتیدلے وو۔
د سوات تـر سیند پـورے قطب طـرف تـه پـه غـرونو کښے
اوسیدۀ۔ او د سیند پـه غاړه ورتـه تر درویش خیلے، تر بازخیلے،
تـر چنداخورے، تـر سوی کلیٔ، د الیاس زیو کلی میشتۀ وو۔
دا واړه و قزان شاه ته متصل براتۀ وُو۔ همیشه به دۀ، مار دارِ
ړے کاوۀ۔ لـکه خان کجـو پـه مهم د غـوریـه خیلو ووت۔
قـزان شاه داؤ بیاموند، زر کاشغر (چترال) تـه لاړ شـۀ چه کاشغر
ورتـه نیزدے وو، د کاشغره (ئے) یـو زورہ‌ور لښکـر راوست، او
کاشغری واړه مسلمانان سنی مذهب خلق وُو، ترکی کوئی وُو، او
اهل رعایا ئے واړه کفار وُو۔ نور په الیاس زیو راوختل او په
دیـولی، د مـلـک جوتی سالارزی په کلی راغلل، هغه ئے وواهۀ۔
نور چنداخـورے پسے تلل دغه کـلی (ئے) پـه مـخ کښے واړه
ووهل۔ مرګ، بند، امارت (ئے) وکړ۔ پس له هغه د الیاس زیو
هیے ورپسے .لور د لوره راغللے او بو کلے د ملیزیو د سیدل ابن
دلخک پوپل خیل چه پۀ پنج کرام (پجی کرام) متصل الیاس‌زیو
تـه پـرپـوت وو ، هغۀ ور ورسیدۀ۔ او سیدل پـه ځان هم ورسره
وو، نورئے د قزان شاه لښکر مات کړ، په مـخ کښے ئے واخست
او دوئی ورپسے وو، تر هغے پورے چه ترکړ غابنی (ئے) واړاوۀ۔
هغه خـوا حـد د هـغـو وو، او اولجے چـه د الیاس زیو د کلیو
دوئی کـړے وے، هغه ئے ترے واړه خلاصے کړے۔ او ډیر ئے
ووژلل۔

پس له هغه یوه ساشت پس نـور پسرلی رخ شۀ مـوسم د

بسندور (بسنت) راغیے او بسندور د کفارو یوه ورځ ده، لکه څمونږ د اختر ـ هر کله چه پسرلے راشی، ګلونه شګفته شی، دوئی هر څوک سره نر ښځے اسباب د عیش جوړ کاندی، لاسونه سرهٔ کا ښے ښے جامے واغوندی ـ شراب خوری شروعه کا،صحرا ته ووزی، سیر کاندے ـ

نور ملک جوکی جاسوسان په قزان شاه پسے کړل چه تاسے ورشئی تحقیق وکانړئی، ورځ مکان د قران شاه د بسندور معلونه کانړئی چه په بسندور به دے په کومه ورځ کوم مکان ته درومی ؟ هغه جاسوسان لاړل تفحص (ئے) وکړ، هغه ورځ، هغه مکان، د هغهٔ (ئے) معلوم کړ، راغلل ملک جوکی زر د الیاس زیو غښه دهاړه تیاره کړله په هغه شپه ووت درسته شپه ئے شبګیری وکړه، په سحر ورغے ګرداګرد دهغه مکان په ښارخوریوه په کندو کښیے پټ شهٔ ـ

لکه چه صباح شهٔ، قزان شاه په خاطر جمع بے اندیشے له خپلو خواصو سطربانو سره په هغه مقام ورغے، لا کوز شوے نهٔ وو، چه لور د لوره الیاس زی پرے راپاڅیدل په غشیو (ئے) وویشت مړ ئے کړ ـ او سر ئے د دهٔ پریکړ، راواخست کورته ئے راوړ ـ چه صباح شهٔ د قزان شاه سرئے واخست له لښکره سره په خان کجو پسے را روان شهٔ ـ د لنډی سیند په غاړه چه لا جنګ شوے نهٔ وو، خان کجو ته را ورسیدهٔ ـ او هغه د قزان شاه سرئے ورته د وړاندے کیښو ـ خان کجو پرے ډیر خوشحال شهٔ ـ آفرین (ئے) پر دوئی ووایهٔ، او شادیانے نقارے (ئے) ووهلے او دغه سرئے په نیک فالئی ونیوه ـ وئے وئیل چه د غوری فتحه به خدائے

راکا۔ مرغ یے بنۀ شۀ، چه د قزان شاه سر په دا هسے وقت را ورسیدۀ او هر چا سره یو د بله د قزان شاه په مرګ مبارکبادئ ورکولے۔ وئیل (ئے) چه اوس مو له ورستو خاطر جمع شۀ، رجعنا الی القصۃ۔

ګویند چه خان کجو له کاله پانړئ په نهایت زودئ سره را ګوچیدۀ راغے، د لنډی سیند په غاړه د شیخ تپور په برابرئ دیره شۀ۔ او په هغه بلندئ (ئے) خیمه ودرولهٔ، او نور لښکر ترے ګرداګرد او د سیند په غاړه اوږدۀ سراسر دیره شۀ۔ لکه موسم د ګرمئ وو غنم مسور وُو۔ اوګدے ورسره وے۔ هر چا چه خیمے لرلے هغو خیمے ودرولے، او هر چا چه خیمے نۀ لرلے هغو جونګړے جوړے کړے۔ پس له هغه ملک خضر خان بارکزے او زوے ئے محمد سعید خان او ملک بیکی بن بهرام بارکشاه زے او میر پاینده اوغیرهاعیان د محمد زئیو بالشکرے بے حد آمده، بالشکر خان کجو شامل حال ګردیدند۔

بعد ازان ملک شیخو ابن خواجو خوبےزے ګګیانے او ملک خواجے لاله زے او ملک آدم لاله زے او خواجه ګل ابن بابکر تبوزے بسوزے او میرا بدال ابن بهزاد الهداد خیل، بهزاد او غیره ملکان د ګګیانو با جمعیت وافره چه اکثر سوارۀ وُو، واړه راغلل په خان کجو پورے پریوتل۔ پس له هغه ملک متهٔ خان بن شمو سالار زے تر کلانړے باجوړے او ملک احمد بن کیمل ابن بختی علاؤ الدین زے یوسفزے او ملک عیسلی ابن میرداد موسیزے ګګیانے چه دا واړه په هغه وقت په باجوړ مخلوط سره په یوه ځله را غلل، دیره شول۔

الغرض نوبت به نوبت د تمامی خښی لښکرے راغے۔

مقابل د شیخ تپور دیره شولے هولبره لښکر سره جمع شۀ، که مثل آن افواج دریا امواج در تمامی افغانستان هیچ کسے دیده و شنیده نباشد۔ و مخفی نماند، وقتے که خان الخوانین خان کجو در گردآوری لشکر خښتی شو، ملک بازید بن محمود خلیل اسحاق زے عیسٰی زے مالیزے که ارباب اعظم و سردار معظم خلیل و مقرب نصیرالدین همایون بادشاه بود، به جهت ملازمت همایون بادشاه به کابل رفته، در حضور پر نور او بود۔ و ملک نیے ابن میرداد اسحاق زے مالیزے که ابن العم و نایب او بود، ملک بهلول عیسٰی زے صدوزے که ایشان هر دو ملکان نامی خلیل بودند، درگرد آوری لښکر غوریه خیل شده، آدمان خود را جابه جا فرستادند۔

چونکه اکثر درآن وقت در ننگرهار بود و بعضے در پشور۔ چنانچه قبیله سلیمان شاه ابن زنگی مهمند اودے زے، که اشجع وقت بود، در پشور بود۔ جابجا آدمان را فرستاده تمامی لشکر مهمند و خلیل و داؤدزے که هر یکے عراق سوار بود، خصوصاً خلیل که همه مسلح وزره پوش بودند، "ودم انا *ولاغیری" می زدند، جمع نمودند و به جمعیت تمام و حشمت مالا کلام کوچ نموده، د خزم هغه خوا، د ډب په غاړه په شیخ تپور پریوتل۔

لکه غوریه خیل، خصوصاً خلیل چه په هغه وقت واړه اهل د ټول وو، فرش فروش او خیمے شامیانے د هر چا لوئے وے، وئے درولے۔ جوړ د بادشاه لښکر ښکاریدۀ، او هغه ځائے چه د

---

* اَنَا وَ لَا غَیرِی۔ (کدیم خوزۀ یم)

خان کجو لښکر او د خلیلو، پورے را پورے پروت وو، هغه ځائے هورته معروف دے -

ګوبند په دغه وقت کښے چه لښکرے د خلیلو په نهایت زور سره را غلے، په شیخ تپور پریوتلے، او زور قوت ئے هر چا ته معلوم شۀ - چه لښکر د خلیلو اکثر سورلۍ وو بیا واړه عراق سوار، سرتر پایه مستور الحدید*، زغره پوش وو - نور د خټکی لښکر اندیښمن شۀ، چه که و رپورے شو او خدا نخواسته شکست سو وشی، واړه به په سیند کښے ډوب شو، نور بے له خان کجو او بے له ګګیانو چه ګګیانی د دوئی جانی دښمن وو، درست لښکر په دا راضی شۀ، عذر طلب شۀ، چه که خلیل یو دوه کسه مشران سفید ریشان سړی او یو دره د ملک بازید د کور سپین سری ښځے او د قطب عالم شیخ میر داد متبرزی نمسے په ننواتے خان کجو ته را واستوی ډیر به ښۀ وی، چه دغه غدر ځمونږ ډیر دے -

. دا خبره هر چا سره ملک خضر خان محمدزی ته ووئیله چه تۀ له خپله لهطرفه دا خبره خان کجو ته وارووه، که د دۀ پرے رضا وی د دے خبرے تلاش به وکړو - په دا میان کښے قبل د ملک خضر خان تر وئلو دا خبره خان کجو ته چا ووئله - خان کجو ډیر په غصه شۀ پاڅیدۀ لاړ شۀ، د ملک سرا بدال دیرے لره، ملک سرا بدال ته ئے پوشیده ووئیل که "اے خواهر زاده! این چه مشورت است که شمایان پوشیده از

*په اوسپنه کښے پټ -

من می کنید که جرگهٔ غور یه خیل را می طلبید۔ اگر مردم غوریه‌خیل به روئداری د ننواتی در اینجا بیا یند عین در دیرهٔ تو خوا هم گذشت"۔

سرابدال عرض کرد که "مایان را چه زهره، که بدون مرضئی شما کار خوا هم کرد۔ آنچه رضائے شما است همان به عمل خواهد آمد"۔ بعد ازان خان کجو از د دیرهٔ ملک سرابدال برخواسته به دیرهٔ خود رفت چون چند روزے به گذشت خان کجو تمامی رؤسائے خبنی را طلبیده استفسار عبور نمودن دریا نمود۔ ملک خضر خان به حسب مقتضائے اهل خبنی هغه خبره و خان کجو ته ووبلہ۔ خان کجو پوه شهٔ چه دا خبره په صلاح د اهل جرگے وائی۔ نور ئے جرگے ته مخ کړ ورته ئے ووبل چه "په دا خبره ستاسے د وارو رضا ده"؟ اهل جرگے ورته ووبل چه "خانه! تر تا زیات مونږ نهٔ پوهیږو۔ هر چه ستا رضا ده هغه ځمونږ هم رضا ده۔" په دغه جرگے کښے ادو او جونا نامان مطربان هم ناست وو۔ خان کجو ورته ووبل چه دمالو! تاسے هم څهٔ ووابئی۔ هغو مطربانو ته مرضی د خان کجو معلومه شوه۔ زر سرودئے آغاز کړ، او پهٔ زوره ئے دا غربیے ووبله :

خان کجو د قره زوبه * خیمه د کړه ولاړه دبره لوبه
اوس په هرشان شیخ تپور ته ستا تلهٔ بویه
او که نهٔ وی دا خیمه به د پیغور شی تر لر غوبه
او بله دا غربیے (ئے) ووبله :

باراخان د موسیٰ زویه * کل ښځې د سره گرد کړلور داوره
که سوداوار غورے پریښو * دے به شي هر گوره غره له خپله زوره

هر کله چه هغو مطربانو دا غریبے وویله، د هر چا په زړه موثره شوه۔ ذوق و شوق د جنگ د هر چا پیداشهٔ۔ نور خان کجو ورته ووئیل چه "اے جرگےٖا زهٔ نور څهٔ درته ووایم هرچه حال دے هغه دا دے، چه دے مطربانو درته او وے۔ رضا ستا دے، بارے که دا گذار تاسے د غوری څه ونهٔ کړل، خود به ووینئ چه غورے بیا له تاسے سره څه چارے وکاندے، او څه رنگ مغرورشي، چه په غرونو کښے به موهم بیا پرے نهٔ پږدي۔"

پس له هغه هر چا سره د خان کجو مصلحت خوښ کړ ونے وئیل چه دا گذار د ښځې لښکرے په زورے خدائے جمع کړی دی۔ و الله اعلم، چه دا هسے بیا چرته جمع شی که نشی، خو فاتحه په دا چه ور پورے وزو۔ جنگ ورسره وکړو۔ هر چه خدائے کا، هغه به کیږی۔

گوېند چه په دغه مهم کښے هر څوک چه دښځې خانواده وو، وارهٔ راغلی وو۔ او په دغه جرگه کښے حاضر وو، نور خان کجو ورته مخ کړ، وئے وئیل چه "اے څمونږ پیرانو صاحبانو! دا ورځ په مونږ ډیره سخته را غلے ده۔ اے تاسے څمونږ ستانه‌دار یئ، او مونږ مو خدمتونه کوو۔ څمونږ دربانده حق دے۔ که چاته له کشفه له الهامه له دے حاله څه معلوم وی، مونږ خبر کانړئ۔" گوېند چه شیخ جلو ابن عثمان مایزے

خواجوزے کہ بہ کشف و کرامات در میان یوسفزی مشہوربود، ازان میان سر بر آورد و گفت، چہ اے خلقہ! ھر څوک سرہ واوړئ! چہ زۀ جلو د ھغہ شیخ عثمان زوئے یم چہ پلار مے پہ کابل کښے د میرزا آلغ بیگ پہ وقت و ملک سلیمان شاہ تہ د یوسفزیو د مرګ اشارت کړے وو، او ھغہ بیا پہ و قوع را غلل ـ اوس زۀ ھم درتہ وایم، چہ پہ دولسم د دے میاشتے، چہ جمادی الاول دہ، تاسے بہ ور پورے شئ، او دوئ تہ بہ نموداری وکانړئ، او پہ دیارلسم د دے میاشتے بہ مو جنګ عظیم سرہ وشی، فتح بہ خدائے درتہ درکاندے ـ چہ رسول مقبول (صلی اللہ علیہ وسلم) څمونږ مُمد و معاون دے ـ او پس لہ ھغہ پہ جذبہ را غلے، درے ګذارہ ئے ووئیل، چہ "غورے مات شۀ" "غورے مات شۀ!" او بیائے وویل چہ "پہ دے عصا چہ مے پہ لاس کښے دہ، د غوری بند مے لہ خبی خلاص کړ، آزاد مے کړ"۔

پہ دے وئیلو د شیخ جلو د جملہ خبی استقلال حاصل شۀ، فتح و نصرت (ئے) خپل شامل حال وګانړۀ، او پہ دغہ وقت کښے د قزان شاہ سر ھم را ورسیدۀ ـ لکہ ما قبل مرقوم شوی دی ـ خوبی پہ خوشئے ډیرہ وشولہ ـ یمن(ئے) خپل ښۀ وګانړۀ ـ

القصہ پہ دا میان کښے غوریہ خیل خبر شو چہ اکثر لښکر د خبی پہ دا راضی دے، چہ کہ غوریہ خیل جرګہ پہ ننواتے مونږ تہ راشی، څمونږ عذر وشی ـ نور دا لښکر بہ سرہ خوږ کړو، او دوئ نہایت بد مست مغرور وو، پہ صلحہ صلاحہ ئے رضا نۀ وہ ـ فتنہ انګیزی ئے واخستلہ ـ څہ قدر خلق (ئے)

را پورے دو آبے ته را واستاوه، د ککیانو خالی کالی (ئے) وسول،
او په دغه وقت کښے د دوآبے خلق اشنغر ته را پورے وتلے وُو
کلی خالی وُو ــ

# مقام هفتم

## در بیان عبور شدن یوسفزی از دریائے لنڈی و جنگ کردن ایشان باغوریه خیل وغیران

گویند هر گاه چه غوریه خیلو د گگیانیو کلی ؤسول، خان کجو اوغیره اعیان د لښکر هر څوک په دا خبر ؤشو، واړو لره غصه ور غلله قصد د پورے وتلو (ئے) وکړ، کشتئی، شنازونه ئے ډیر بهم ؤرسول - چنانچه سر آدم (ئے) شناز پیدا کړ، پس له هغه خان کجو ملا احمد ابن خدایداد متیزے الوزے، چه له قدیمه له خلیلو را غلے وو په خواجوزی ملیزی کښے اوسیدهٔ په شیخ خیله کښے (ئے) کور وو، د کایش خیلو امام وو او ډیر ښهٔ دانا سړے وو، هغه ئے غوریه خیلو لره واستاوهٔ چه ملک نبی او ملک بهلول ته ؤوایه، چه "که د صف جنګ د میدان اختیار لرئی، گذر راته پریږدئی، چه زهٔ در پورے شم - په رڼړا ورځ میدان ته در شم - او که نهٔ وی، زهٔ له گذره بیرته شم، تهٔ راپورے شه - چه هر خدائے کا هغه به کیږی - "

لکه ملا احمد ور پورے شهٔ، او دا پیغام (ئے) ملک نبی او ملک بهلول ته ؤرساوهٔ - دوئی دواړهٔ پرے خوښ ؤشو، ورته ئے ؤویل چه "ښه خبره ده - څمونږ هم په دا رضا ده، گذر به درته پریږدو، په خاطر جمع را پورے شئی" - نور ملا احمد له دوئی را رخصت شهٔ راغے دا جواب (ئے) خان کجو ته وکړ، خان کجو یوسف زی مندړ را ټول کړل، ورته ئے ؤویل چه تاسے یوسف مندړ سره هسک واچوئی، د هر چا هسک قرعه چه

اول وخیژی، هغه د وړاند پورے ورزی۔ چه هسک نے سره واچاوهٔ هسک اول د مندړو وخوت۔ مندړ په دا باندے ډیر زهیر شول۔ وئے ویل که اول ور پورے شو، او غوریه خیل بد عهدی و کاړ، باندے راشی، مونږ به وارهٔ قتل کا، او خان کجو په دا خبره زهیر شهٔ۔ اندیشمند متفکر ناست وو نور په دا میان کښے چاو پوښتیدهٔ، چه خانه! وړے دا هسے ملال ناست نے؟ دهٔ ورته وویل چه "له قدیمه څمونږ د یوسف د مندړ دا دستور وو چه په هر جنګ په در مهم به د نیک فالئی د پاره مقدمة الجیش د بوپل کور وو۔ او ن ورځ خلاف عادت ولید شهٔ۔ خیر د وی" نور سلیم خان ابن معدود ابن بوپل او سید او جوکا ابنان دلخک ابن بوپل درے واړه پاڅیدهٔ، وئے ویل چه بنه خبره ده خانه! چه ستا مرضی ده، اول به مونږ ور پورے وزو۔ نور دوئی درے واړه روان شو۔ خان کجو حکم و کړ، چه "اول کشتئی دوئی لره ورکانړئ۔ چه اول دوئی په کشتئی کښے پورے شی، نور وروستے ما بقیه لښکر بیا په یو ګذار په کشتو، په شنازونو پورے ووزئ۔ چه مبادا غوریه خیل چرے پرے راشی تګی وکاندے"۔ نور سلیم خان او سید او جوکا بیا جمیع قوم ملیزی خود په کشتیو کښے کښیناستل ور پورے وتل۔ پس له هغه وروستے تمامی لښکر په یو ګذار څوک په شنازونو څوک په کشتیو ور پورے وتل۔ د ډب په غاړه ډیره شو۔ او هر چا سره پخپله برابری دم در حال خندق او خاربندی وکړله۔ شپه ئے په هغے ځائے تیره کړله ــ

چه صبا شهٔ خان کجو حکم وکړ۔ چه هر قدر مطربان چه په دے لښکر کښے شته دے، هر چا څخه چه وی، هر څوک سره

د ورته ښۀ آس، او وسله ورکاندے، واړه د لاړشي و غوريه خي ته د نموداری وکاندے۔ او غرض له دے له د خان کجو قوت نمائی وه۔ نور هر چا سره خپلو سطربانو لره آسونه وسلے ورکړلے ښۀ ئے جوړ کړل واۓ ستول۔

گويند چه واړه اووۀ سوه ډمان د لښکر سره جمع شوی وو او سرداران د ډمانو په دے وقت د يوسفزيو بلکه د درست خښي شتيکی او آدو وو۔ او دوئی دواړه د سدوزيو ډمان وو، نور دوئی دواړه له دے آودۀ سوو ډمانو سره له لښکره ووتل لاړل۔ هورته په خزم ښاندے د علی ترکی معدود زی خليل يو کلے وو خلق ترے تښتيدلی وو۔ هغه کلے ئے وسۀ۔ او يو غوئے کوته مانده چه د چا پاتے شوے وو، هغه ئے هم ژوبل کړ۔ نور ترے راغلل۔ لکه چه لوگے له کلی وخوت لنبے هسکے شوے خليل خبر شو۔ ورپسے راوتل۔ اما دوئی ترے بيا راغلی وو۔

په دغه ميان کښے فتوکے نام مطرب که از مدت يکسال از خليل برآمده در يوسفزی نزد احمد ولد کيمل بن بختی اکوزی خواجو زی علاؤالدين زی مے بود، په يوه بهانه سره له دے ډمانو ورستو شۀ۔ آس (ئے) وروزغلاوۀ، د خليلو به هغو سورو ورننوت سلام ئے وکړ۔ ورته ئے ووبل، چه زۀ ستاسے نمک پرورده ډم وم په دے هسے وقت در لره راغلم۔ او آس وسله مے هم د يوسفزيو دلاسه درلره راوړله۔ هغو دارسدارئے وکړ پوښتندئے ترے وکړله چه دا سوارۀ د کوم ځاۓ وو۔ هغۀ ورته ووبل چه دا سوارۀ واړه مطربان وو چه د خان کجو په حکم راوتلی وو نموداری ئے کوله بعضے خليلو سره ووبل چه هرگاه دا هونبره

فوځ د ډمانو دے هغه لښکر به ئے ګوره ځوروی - او بعضے خیلو ووېل چه دا خان کجو مونږ ته هسے سیاهه کړے وه - زورے راته خپل ښایۀ - خیر خود به ښکاره شی - څمونږ د دۀ سره صباح په میدان جنګ دے -

نور هغه مطربان راغلل خان کجو ته ئے سلامونه وکړل دا حال ئے ورته ووایۀ - خان کجو ترے ډیر خوش شۀ - سرفراز (ئے) کړل، وئے وئیل چه فال موښۀ شۀ - ډمانو سوهم د دوئ کلے وسۀ - دا فتح به خدائے مونږ ته راکا، په صباح چه جنګ وشۀ هغه فتوکے مطرب په کښے ومړ -

ګویند چه هغه کلے د غوریه خیلو چه مطربانو وسۀ، غوریه خیل ډیر په غصه شو هم په هغه شپه صلاح ئے وکړله چه صباح به وزو - په میدان مو ورسره جنګ دے، نور په هغه وقت جاسوس د خان کجو راغے، ورته ئے ووئیل چه صباح غوریه خیل درباندے راځی، خپل ځان ورته تیار کړه - خان کجو په هغه وقت دیره په دیره سړی وګرزول، منادی ئے وکړله، چه "هر څوک سره ځانونه تیار کانړی مسلح ناست اوسئ" -

چه هغه شپه تیره شوه صباح شۀ هغه ورځ د دیارلسم د جمادی الاول وه ، غوریه خیل وقتی صباح له خپلو دیرو راووتل، را روان شول - دوئ هم ورته جوړ تیار ناست وو، لښکر ئے خپل راویوست، صفونه ئے سره جوړه کړل، په دغه وقت کښے خان کجو او ملک سر ابدال، او ملک خضر خان و ملک بیکی محمد زی ته ووېل چه "اے محمد زیه ځما ننګیالیه محمد زیه وروره! ورځ

د وروری د نیکئی دا ده۔ او ځما ۔ له تاسي او بے له یوسفزیو
په بل فریق اعتماد نشته، چه ترکلانړی، اگرچه بهادر خلق دے،
اما لیر خلق دے، خو دوه سوه سواره راغلی دی ۔ او گګیانی اگرچه
ورونړه دی، او ډیر خلق دے، او د ملک محمد خان په مرګ تر
مونږه درد منددی، اما اعتماد ہے پرے نشته، چه دوئی لافے کاندیے
تیز ژبان دی، او اوس ځایونه د محنت د ضرور هم دا دوه ځایه
دی ۔ چه را پیښ شول یو مقابله محاربه له غوریه خیلو سره، بل
محافظت انګهبانی د ورستو له پخونی نه ۔ اوس هر مقام چه ستاسے
دلخواه دے هغه اختیار کانړئ" ۔ ملک خضر خان او ملک
بیګی ورته ووېل، چه خانه! مونږ ستا غلامان یو، په تپئی*
ځکه چه په یوه کاسه وکړه د پیرودی یو، او دغه یوه کاسه
وکړه کنایت له ملک د (شنغر رو۔ اوس هر یو مشکل خدمت
چه وی مونږه ورته تیار یو ۔ خان کجو ورته ووېل "آفرین بادا
ځما هم دا رنګ طمع له تاسے کیدله ۔ زۀ چه په تاسے نازیدم
د دے ورځے د پاره، اوس می باید چه تاسے تمام محمد زے مخ په
سهیل لاړشئ د هغو کندو خارخوړو په مخ صف بسته ودریږئ،
او ځمونږ پشت ساتلے لرئ ۔ که څوک ځمونږ په شا راځی
د هغو دفعیه تاسے کوئ ۔ او که نۀ وی، قائم په ځائے ولاړ
اوسئ، که خدائے مونږ ته فتحه راکړله ۔ دښمن موله مخے مات شۀ،
نور رادرومئ، تعاقب ورپسے کوئ ۔ د زدن کشتن صرفه پرے مه
کوئ ۔ او خدانخواسته که شکست مو وشۀ، هم فی الفور را رسئ
چه ځمونږ د خلقو استقلال درباندے وشی، ودریږئ" ۔

---

* همه واړه، په جمع، ټول ۔

نور محمدزیو خپل لښکر جدا یو صف کړ، او په اخلاص سره هغه ځائے ته ور روان شو ورغلل۔ صف بسته مخا مخ د هغو کندو ودریدل۔ پس له هغه د خان کجو خاطر جمع شه۔ د خپل لښکر په اهتمام شه۔ گویند چه خان کجو درست لښکر د خپې اووهٔ صفه کړل شپږ صفه ئے د پیاده ؤکړل او یو صف ئے د سورو کړ۔ او په دا هیئت سره (ئے) ودرول چه اول صف د ډال غاړو پیاده ؤ وکړ، چه واړو تورے په لاس کښے وکښلے نیولے وے او پنځه صفه ئے وریسے د تیر اندازو کړل، او اووم صف (ئے) وریسے د سورو کړ۔ اما دا صفوتِ سبعه ئے واړه په هسے شان سره ودرول چه هیڅ کشادگی او تفاوت (ئے) ترمیان نهٔ وو۔ او سوارهٔ ئے هم هسے وریسے متصل ودرول چه د سوارو نیزے د پیادؤه په شا لگیدلے۔

گویند چه سواره هونبره له دغه صفه زیاتی شول چه دغه صف (ئے) عشر عشیر هم نهٔ وو، آخر واړه ئے فوج فوج، غولونه غولونه کړل ، د ورستو ئے وریسے ودرول او خان کجو چه دا صفونه جوړول، په یوهٔ یرغه آس بانده سور وو د واړو صفونو په مخ کښے به گرزیدهٔ تعلیم، تلقین، د جنگ به ئے هرچا ته کاوهٔ ، ورته به ئے وئیل، چه "ورونړو عزیزانو واروئی! غوریه خیل مړنے خلق دے پهٔ شجاعت سره مشهور دی، او واړه عراق سوارهٔ دی، مشهدی، مصرئی تورے ترملا اری بیا ملک (ئے) هم خپل دے او څمونږ وطن لرے دے۔ او ترمیان مو لوئے دریاب دے، او اهل ناموس هم راسره پورے دی۔ وقت د تورے د مردئی دے۔ که نهٔ وی که مات شو، واړه به قتل او ډوب

شو هیڅوک به خلاص نهٔ شو۔ د جهان مسخره به شو۔ او ناموس به مو هم برباد شی"۔

و دیگر نیز فرمود، که ملک یار خان ان موسیٰ اکوزے بائیزے، خولیزی و سید و جوکا ابنان دلخک ابن هوپل که در وقت جنگ از غایت شجاعت بےهوش می شوند، و بے پرواهانه طور بر سرے دشمن می آیند، در آنوقت لگام اسپ ایشان دو طرفه محکم به بگیرند که بے لحاظ، بے محل، در لشکر دشمن در نیایند و هلاک نه شوند که بر ما بسیار عزیز اند و سواران شجاعت شعار در لشکر بسیار اند، حاجت بدیشان نیست و خدا نخواسته که څمونږ شکست و شهٔ هالهٔ دنی را پریږدنی چه هرڅه چه ئے له لاسه کیږی هغه بیا وکاندے۔"

و دیگر فرمود، چه "د ګګیانیو سوارهٔ د خپلو سورو په میان کښے کانړئی، او پیاده ئے د خپلو پیاده وُ په میان کښے کانړئی، چه دوئی تیز زبانی دی، چرے ونهٔ تښتی، ماتے راباندے ګډه نهٔ کاندے"۔

و دیگر فرمود چه "په مسافت د یوهٔ تیر پرتاب راشی، د هر صف تیرانداز د غشی ولی۔ اما په هسے شان سره چه غشی د واړو صفونو له سرونو تیریږی، او سواره د هم له پیاده وُ سره هسے متصل دروسی، چه نیزے ددوئی خپلو پیاد وُ ته رسیږی۔ هر ګاه چه بیا پیاده په مقام د شمشیر زنئی راشی، هاله د ترے بیا وړاندے کیږی۔ د دښمن له سورو سره د مبارزت کاندے۔"

گویند چه خان کجو پس له برابرولو د صفونو، اوله وارو تعلیمونو د جنګ، نور له هغه راهواره آسه کوز شۀ، ځان ئے په ښۀ شان مسلح مغرق جوړ کړ، په یوۀ بل قوی عراق آس بانـدے سور شۀ له خپلو صدوزیو سره د وارو صفونو دنبال ته راغے، او ملک سر ابدال او ملک یار خان، او ملک سلیم خان او سید او جوکا ابنان دلخک پوپل خیل ملیزے او کرم علی الیاس زے، او ملک بین او ملک خدایداد صدوزے دا واړه ورسره وو، هرچاته ئے وُوئیل، چه وقت د مردئی دے، د جلب غلامه کوئی او توکل په خدائے کانړئی روانیږئی، نور واړه صفوف سبعه صف بسته مخ په مغرب د غوری و لښکر ته وخوځیدل۔ او د غوري لښکر هم مخ په مشرق د دوئی و لښکر ته روان شۀ۔

په دغه میان کښے میر فحکے نام مهمند مریم زے کـه مزدار نامی مهمند بود با پانصد سوار مهمند برائے اختفا و کمین به طرف سهیل جائے که خطرۀ خان کجو می شد روان شدند۔ و با لشکر خلیل و داؤد زے و مهمند با بعضے توابع از چمکنی و زیرانی و شنواری و نیلابی وغیره د خان کجو لښکر ته راروان شو، هرګاه چه غوریه خیلو د خان کجو لښکر له ورایه ولید۔ یو صف ورته ښکاره شۀ۔ نورئے زر خپل لښکر هم یو لوئے نرے صف کړ۔ د خان کجو تر لښکرئے هم طویل ساز کړ۔ خان کجو چه د دوئی صف ولید چه د دۀ تر صف هم طویل وو، ډیر متوحش شۀ۔ خطرۀ ئے ترے پیدا شوله۔ او له قلته او له کثرته د صفونو خبر نۀ وو۔

لکه چه جانبین سره قریب شول، خان کجو پوه شۀ چه

ښکر د غوریه‌خیلو هگي واړه یوصف دے. نهایت ډیر خوشحال شو۔ ځکه فتحه ئې یقین حاصل شو، ووئې وئیل چه غوریه خیلو تدبیر د جنگ خطا کړ، غلط شو۔ او بے وقوفي ئې وکړله چه لښکر ئې واړه یو صف کړے دے۔ هر چرته چه پوله نړے وی، اوبه هورته ساتیږی۔ او غوریه‌خیلو چه له ورایه د خان کجو دا ورستے غولونه فوجونه ولیدل ووئې کنړل چه گوندے دغه واړه د غواؤ د میښو گورسونه دی۔ خان کجو موږ ته سپاهی جوړه کړے ده۔ موږ پرے ویره وی، چه سره نژدے شو ورته معلوم شول چه دا واړه فوجونه دی۔ د هرچا امید له ځانه قطع شو ووئې ویل، چه له دے هونبره افواجو خلاصے ځموږ په عقل نه راځی حتیٰ که ملک خواجو ابن بابو داؤدزے که بسے عالیجاه بود و تمامي مستورالحدید بود، هرڅه ئې له ځانه وکښل اربے (ئې) کړل وے غورزول۔ او ووئې وئیل چه له دے هونبره لښکرو خلاصے ځموږ محال دے۔ پس څه فائده چه ځان عزابوم او دا هونبره بار گرزوم، خوچه جنگ سره شروع شو رښتیا دغه په کښے وسړ۔۔

---

## شکست خوردن غوریه خیل از یوسفزی

القصه هرګاه چه دواړه لښکره سره نیږدے ورغلل، د خلیاو سورو، یک جلبه د خښې په لښکر راپریښوے، چه په یو ټیر پرتاب راغلل۔ هلته خان کجو حکم وکړ چه "تیر اندازو ولئې، صرفه مه کوئ"۔ نور واړو صفونو په یو ځله پرے شیبه کړله، دارنګ تیر بارانونه ئے پرے وکړل چه تابه ویل چه د پاسه پرے توره ورځ راغله، ملک پرے تورتم شۀ۔ او له ډیره کثرته د غشیو چه هاس په هوا به یو بل سره لګیدل کړسهار شۀ۔ هونبره غشي په سورو لک شول چه په بعضو شل، په بعضو څلویښت، په بعضو سل‌سل هم ولګیدل۔ واړه سره ئے نسکور کړل، وئے ځملول۔ اکثر تر صفونو د یوسفزیو راوتۀ رسیدل، هورته پریوتل او بعضے بیخوده په سرجونو کښے پریواتۀ او بعضے په رکابونو کښے نښتی زوړند تر صفونو آسونو راوړل۔ هورته پریوتل، ووژلل شول۔

غرض دا هسے تیر بارانونه پرے د غشیو و شول چه دا رنګ تیر بارانونه په غوږو آوریدلی شوی نۀ دی۔ او نۀ په تواریخو کتابونو کښے لیدلی شوی دی۔

قاصی این قصص خواجو مؤرخ می ګوید که من از حسن ابن الیاس اکوزی خواجوزی ملیزی ابابکر خیل بارها شنیده ام که می ګفت، چه په دغه جنګ کښے هرڅوک چه د یوسفزیو بربنډ سور وو، خان کجو واړه پیاده کړل۔ د یوسفزیو بلکه د درست خښې پیاده تر سورو بهتر دی۔ نور زۀ هم بربنډ سور وم

خان کجو زۀ هم پیاده کړم، لکه چه غوریه‌خیلو رابانده را ولاړے کړلے او په مقام د تیر پرتاپ راغلل، هرچا سره غشی ویشتل شروع کړل۔ ساهم گذارونه آغاز کړل تر هغه پورے چه دوئی د تورو په مقام راتلل، لس گزاره د غشیو ما بیا کړی وُو۔ او د یولسم غشی وار مے سازنۀ شۀ۔ توره مے وکښله۔ د تورے گزارونه مے وکړل۔ نقس* هکذا جمیع اهل العسکر۔ او هرگاه چه دواړه لښکره سره مقابله شو نور د تورو د خنجرو د تیر زینونیو هسے مار سره وشۀ چه د سریو او د آسونو پشتئی غونډئی په هغه میدان کښے جوړے شولے‌ملیکونه پرے ډک شول۔ آسونه سری واړه په غشیو غلبیل، په تورو وړژلی برغنه برغنلو سره پراتۀ وُو۔ اما لکه اقبال د خان کجومل وو، او لښکر ئے هم‌لا تعد و لا تحصی** وو، تابه حدے چه غوریه خیل ئے عشر عشیر هم نۀ وو، فتحه د خان کجو وشوله۔ غوریه خیل مات شول۔ سوارۀ اکثر په اول هله کښے پریوتلی وُو۔ او بعضے که څوک سالم پاتے شوی وُو، هغه هم وتښتیدل او پیاده ئے واړه مخ په‌قبله پیښور ته روان شو او د درست خښی لښکرے وریسے وے، ځائے په ځائے ئے لاندے کول وژلل ئے، ملکونه لاړے (ئے) پرے ډکے کړلے اما آفرین د دوئی په همت شه خصوصاً د خلیلو، چه په شکست کښے ئے هم هسے پیرونه جنگونه سره کول او د تورو د غشیو گزارونه ئے کول، چه خلق ئے سره طوفان کړۀ۔

---

* په دے قیاس که، چه تول لښکر هم دغسے اوکړه۔

** ۔ شماره او بے حسابه۔

ګویند چه په دغه وقت کرم‌علی ابن فتح خان الیاس زے سالار زے که نهایت صف شکن و مبارز وقت بود په یو څو پیاده ؤ د خلیلاو پسے راغے، چه هغه پیاده په تیښته کښے وُو، نور دے زغره پوش، پټ سپاهی وو، آس ئے پرے را لغت کړ۔ په دغه میان کښے یو پیاده په غشی هسے شان سره دے وُویشت چه په هغه ځائے له اس پریوت وسر۔ او آس ورته په ځائے ودریدهٔ، چار چاپیره سوارهٔ خپل ورته ولاړ وُو ناګاه خواجه خضر ابن چوهړ او شاهی ابن سیداحمد الوزے خواجوزے ملیزے چه دوئی‌دواړه سره سکه تربرونه وُو، پرے باندے راغلل، کرم علی ئے ولید، وئے پیژاند چه سړ وو، او آس ورته ولاړ وو او چار چاپیره ترے سوارهٔ پنډ وُو۔ نور وئے وئیل چه "اے نامردو! کرم علی غونډے ځوان ئے درنه مړ کړ، او تاسے ورته ولاړ یئی۔ او دوئی درنه امانت سلامت لاړل"۔ دوئی ورته ووئیل چه دغه پیاده هسے کم خطا او تیرانداز دی چه غشی ئے تر هیڅ نه ودریږی۔ د چا قابو پرے نهٔ کیږی نور دوئی دواړو سره ووئیل چه دا خوجیف دے، چه کرم علی ئے له مونږه مړ کړ، او دوئی رانه سلامت لاړل، صباح به قام ته څرنګه سترګے غړ وُو نور دوئی دواړه ورپسے راغلل ور ورسیدل اوپه یوه ګزار (ئے) پرے راوخیژولے، ولے هغو پیادهؤ پرے ګزارونه د غشیو وکړل خواجه خضر (ئے) د ډال په پترئ په هسے شان ووپشت چه له ډاله ئے غشے وخوت په مټ لګ شهٔ او شاهی ئے په سر،په خول په هسے شان ووپشت چه خول کروپ شهٔ۔ اما دے بچاؤ شهٔ۔

قاصی ابن قصص خواجو ګوید چه ما بارها له شاهی مذکور

اوریدلی دی چه هغه غشی ماته هونبره زور راکنړے وو، چه سر را باندے وګرزیدهٔ سترګےئے توړے شوئے۔ امتا په دغه میان کښے نور سوارهٔ هم ډیر راپسے راؤرسیدل، هغه پیاده ئے هم ووژلل او د هغه پیاده لینده، چه شاهی ئے پرے ویشتلے وو چا "سودم" لره راؤړله، په جماعتونو په حجرو ګرزولے شوه۔ هسے تینګه سخته وه چه هیچا نهٔ شوه راکښله۔ هغه لینده په درست یوسفزی کښے مشهوره وه۔

الغرض آفرین د خلیلو په پیادهٔو چه په ابتدا کښے (ئے) هم هسے غشی ویشتل، او هسے د توزو ګزارونه ئے کول لکه چه حق د ویشتلو او حق د تیرے وی،-اوپه آخر کښے هم، په حال د شکست کښے (ئے) هم هسے پیرونه کول، ګزارونه د غشیو د توروئے کول چه اکثر سوارهٔ د خښی د دوئی د لاسه و مړل او ګایل شو۔ حتیٰ چه خان کجو ئے هم یوهٔ پیاده په سر ویشتلے وو۔ بارے خول ئے په سر وو، هونبره ډیر په کښے لاړ نهٔ شهٔ۔ اما هسے محکم په کښے لګ وو چه چاله ویرے په دغه کشمکش کښے نهٔ وکیښ چه خطره ئے د مرګ وه۔ او دهٔ پخپله وکښلے نهٔ شهٔ۔ نور خان کجو هغه غشے مات کړ، څه ۔ وغورزاوهٔ څه ئے په سر کښے پاتے شهٔ او دهٔ پرے پروا نهٔ لرله، درسته ورځ (ئے) جنګ کاوهٔ۔ هرګاه چه بیګاه دیرے ته ورغے هاله ئے هغه غشے جراحانو وکیښ۔ ډیر خیراتونه ئے پرے وکړل۔ او ډیر درد و الم پرے تیر شهٔ۔ اما الله تعالیٰ ورته خیر کړ۔ او داؤد زیو د جنګ هیڅ کمے ونهٔ کړ، لهٔ خلیلو سره په هر ځائے به هم ولاړ وو۔ بس پائی ئے هیچر ته ترے ونهٔ کړله، اما مهمندو نامردو بےغیرتو هیڅ ونهٔ کړل۔

واړه له خپلو توابعو همسایه ؤ سره ـ چنانچه سرغلانی او زاخیل او چمکنی او سلا کوری او زیرانی او شینواری امانت سلامت بے جنګه بے جدله وتبتیدل، په هغو کندو نتوتل سراسیمه لاړل او محمد زیوئے تعاقب وکړ وروسے لاړل بسیار ئے از سواران نامی ایشان کشته باز بنه نزد خان کجو مراجعت نمودند ـ خان کجو ایشان را نوازش بسیار کرده تحسین بلیغ فرمود و بعد ازاں بایکدیگر تعاقب غوریه خیل کرده تا شهر پیشاور به رفت و در راه هر کسے را که می یافتند قتل می نمودند ـ او نوجونه لور د لوره تر پیښاوره تر سرښده تر شیر ګړهے تر چهل ګزی تر تویه تر جمروده لاړل، هرچرته چه د خلیلو، مهمندو، د داؤدزیو کلی ووواړه ئے تاخت تاراج کړل د قتل د اسرت د الجو صرفه هیچا ونهٔ کړله ـ درست خښے پرے معمور شهٔ ـ قاضی ایں قصص خواجو سی ګوید که من از ملک‌تنی ابن عبدالرحمان ابن شیخ احمد ګګیانی مغل‌خیل بارها شنیده ام که می ګفت که من با پدر خود رفته بودم و درآن جنګ حاضر بودم ـ دولس برده او څو بارونه د رخت او ډیر مال سویشی یوازے ما راوستلی وو ـ نقس عاولِ هذا ـ تمامی د درست خښی لښکر ـ

الغرض خان کجو له لښکره سره تر ګور ګټلئی د پیښور پورے پخپله ورپسے ورغے هورته ئے په لوړه په بلند ځائے شامیانه لګه کړله ـ استراحت ئے ترلاندے وکړ ـ او لښکر درست په اطرافو جوانبو خور وو د لوټونو د بندونو کمے هیچا ونهٔ کړ لکه چه نماز پښین شهٔ خان کجو نمونځ وکړ ـ نور ئے اور په لور سوارهٔ و اطرافو ته واستول لښکر ئے را طلب کړ ، ووئے ویل چه بس کانړئ ـ هر چه وڅښو هغه وڅشو ـ اوس

تربیگاه هرڅوک ځان را رسوئی حاضر شئي۔ او دهٔ نور نقاره وکړله، په خوشئی په خوشحالئی په فتحه نصرت را روان شهٔ ۔ هم په هغه ورځ نماز دیگر خپلے دیرے ته د دب غاړے ته راغے دیره شهٔ۔ نور په هغه ساعت شیخ جلو ابن شیخ عثمان اکوزے خواجوزے ملے زے که ذکر او بالاشده است با چند معتبر خان کجو در تمام لشکر دیره به دیره گردیده همه اسیرانِ احرار غوریه خیل را خلاص نمودند۔ هم دران وقت از لشکر بدو کردند و شب را نه گذاشتند۔ او هر چه اهل برده تور خیل خلق وُو هغه پاتے شهٔ ۔ هر چا چه نیولی وُو هم د هغو شهٔ۔ او بعضے خلقو اصیلے ښځے هم نبائسته چه د چا په لاس کښیوتلی وے پتے کړلے، بوئے تللے۔ غورتے ئے کړلے ۔

الغرض هر چه شیخ جلو وبلی وُو ۔ او په ابتدا کښے دهٔ خبره کړے وه، هغه واړه هوُ به هوُ ظاهر شول ۔ نور هغه شپه خان کجو هورته په هغه ځائے تیره کړله ۔ صباح وقتی را وکوچیدهٔ تر لنډی سینده را پوزے ووت ۔ هورته هر څوک سره رخصت شول خپلو کورونو ته لاړل ۔

گویند چه په دغه جنگ کښے پنسو کسه د خښی سرهٔ وُو، اما زیات په کښے یوسف زی وُو۔ او دا څلور په کښے نامداران سرداران د یوسفزی وُو ۔ یو کرم علی الیاس زے، دوئم سید ابن دلځک ابن پوپل یوسف زے خواجوزے برادر ملک سرابدال، دریم الو ابن مانا بان دولت اکوزے بائیزے څولیزے څلورم غازیخان ابن خان مندړ ملک زے او د گایلو د ژوبلو خوشمار نهٔ وو۔ کم سړے وو چه له زخم خلاص وو ۔

گویند چه بعد از جنگ شیخ تپور درجۂ خان کجو به نهایت علو رسید۔ تمامی اقوام افاغنه مطیع ومنقاد او شدند۔ وکسے را زهرۂ آن نه بود که مخالفت مرضی او کند، و خان کجو بعد از جنگ شیخ تپور سه چهار سال پس با لشکر تمام آمده قلعه دار بگرام شهر پیشاور راکه سکندر نام اوز بک که از طرف نصیرالدین محمد همایون بادشاه از کابل آمده بود محاصره کرد، اما چون قلعه سخت بود بے فتحه معاودت نموده باز آمد۔ بعد از ان باردیگر از دریائے اباسیند عبور نموده تمامی ملک آن روئے آب را از سنجده و گهیپ وغیره تاخت و تاراج نمود مال مواشی واسرات و غنیمت ایشان به دست آورده مراجعت نمودند۔ دفعه ثالث نیز تمامی عساکر خبنیه را جمع نموده از دریائے اباسیند عبور کرد ملک چچ هزاره کورلغ هزاره و مانگراو را با جمیع ضمایم و مضافات او گرفته متوجه ملک درمتوز وپکهلی شدند۔ چون به موضع کوت بارو رسیدند سلطان غیاث الدین تیرک که سلطان پکهلی بود استماع یافته اشیائے نفیسه را به رسم تحف وهدایا ارسال داشته پیشکشی وے سال به سال قبول نمود مطیع و منقاد او شدند۔ چون از آنجا بر گزشته آمد عازم ملک گکهر شدند چون سلطان آدم گکهر از آمدن وے مطلع شد تحفه و تحایف را مثل سلطان غیاث الدین فرستاد پیشکشی واطاعت وے قبول کرد بعد از آنجا مراجعت نموده به خانۂ خود تشریف آوردند۔

## ذکر ممالک متصرفهٔ خان کجو

الحاصل درسته سمه، تر اشنغره، تر لنډی سینده تر اباسینده او درست سوات تر تورواله تر تیراته، تر پنجکوړے تر نیاکه، کـه مسمیٰ به لاهور ابت او درست بونیر او چمله تر تینوله، او درست اشنغر او درسته دوآبه او درست باجوړ تر هندو راجه، تر اسماره تر ناوه‌ګئی تر ګونړه او درست پیښور تر کړپے د خیبره تر ننګهاره تر تیراه تر کوهاټه او درست ختک او پورے تر اباسینده تر نیلابه تر سجنډے تر ګهیپ تر سوهانه تر مارګلے تر ګکهړ و تر پکهلئی، دا ملکونه واړه د دهٔ مسخر ګوو - اهل سکنه ئے بنده او فرمان بردار ووـ په هر وقت په هر مهم چه به ئے بلل قصور دریغ په کښے د چانهٔ وو -

ګویند چه یو نیم لک لښکر د دے ملکونو د دهٔ په حکم جمع کیدهٔ - ډیر کالو نه ئے حکمرانی او سرداری علی وجه الانفراد بلااضداد وکړله - سلطان رفیع‌الشان بادشاه نشان وو او کرامات ظاهره او خوارقات باهره ترے هم ظاهریدل - مستجاب الدعوات عامل الصالحات وو استمداد باطنی به ترے هرچا غوښت - حوائج مشکله او امور دینیه و دنیویه به د دهٔ په دعا د هر چا حاصلیدل -

---

## ملاقات خان کجو با خواجه خضر علیه‌السلام

گوېند چه خان کجو لا ځلمی وو قضاءً حاجت لره بهر له کلی لرې چرته تللی وو. ناګاهه یو سپین ږیری نورانی حقانی نیک سیرته، خوب صورته پرېږې پرې باندې پیښ شهٔ. دهٔ ئې تعظیم تکریم وکړ، هغه پرې مهربان شهٔ. یو پخه خوږه خربوزه ئې په لاس کښې وه، ورته ئې ونیوله. دهٔ لرې په ادب واخستله. نور هغه ځوان له هغه ځایه وړاندې لاړ شهٔ، غائب شهٔ؛ او دهٔ هغه خربوزه راوړله. د اوبو په غاړه کیناست نیمکئی وخوړله. او نیمکئی په څادر کښې ونغښتله کېښوله. نور په طهارت مشغوله شهٔ اودس ئې وکړ دوګاله ئې وګذارله. ورد وظیفه ئې ولوستله نور بائیدهٔ هغه څادر (ئې) واخست هغه خربوزه ئې په کښې کتله. هغه خربوزه نهٔ وه، هرچند جست و جوئی وکړ، بیائې نه موندله او په هغه ګرد نواح هم څوک سړې احد بن الناس ور غلې نهٔ وو. نور نهایت متعجب شهٔ آخر دا یقین (ئې) وشهٔ چه شاید هغه ځوان خواجه خضر علیه‌السلام وو. او دغهٔ خربوزه چه (ئې) ماته راکړې وه، دغه ځما څه تقویه بخره وه بارې لکه نیمکئی مې وخوړله او نیمکئی مې پرېښوله معلوم شوچه ازلی نصیبه ځما دغه هونبره وه، چه مې وخوړله نور په هغه مابقیه نیمکئی خربوزه پسې (ئې) ډیر افسوس کاوهٔ بارې وقت تیرو و فائده ئې نهٔ کوله. پس له چند ګاهه یو بل فقیر پرې پیښ شهٔ چه صاحب کشف و کرامت وو، د هغې خربوزې حال ئې ورته ووایهٔ. هغه ورته وویئیل چه هغه ځوان مهتر خضر علیه السلام وو، او هغه خربوزه چه ئې درکړې وه هغه بادشاهی وه، که درسته د خوړلې وې درست بادشاه شوې بهٔ وې

یعنے صاحبِ سکہ او صاحب خطبه شوے به وے او چه نیمکئی دِ ٌوخوړله نیمکئی دِ پریښوله نیم بادشاه به شے۔ یعنی سکه خطبه به دِ ده وی۔ او نور زور، قوت به دِ د بادشاه وی۔ او الحق پسه له هغه دے بے سکے بے خطبے بادشاه شهٔ۔ ډیر کاله ئے سلطنت امارت وکړ چه زوړ شهٔ معمر شهٔ صوابئی لره لاړ شهٔ۔ هورته ئے استقامت وکړ۔ بعد از چند گاه هورته وفات شهٔ۔ د غرهٔ خواته چه هغه غرهٔ ته خان کجو ترکنی وائی هلته دفن کړے شهٔ۔ قبر ئے هورته څرګند او عیان دے۔ یزار ویتبرک به غفرالله له وتغمدهٔ بالرحمته والغفران۔ او پس له وفاته د دهٔ درے څلور کاله پس ملک بارا خان وفات شهٔ۔ او پس له باراخانه درے څلور کاله پس سرابدال وفات شهٔ۔ قبر د ملک سرابدال په شیرِ خانئی کښے دے۔ اول پرے د پاسه کوټه ولاړه وه اوس هغه کوټه ونړیدله پروتله۔ اللهم اغفرلنا ولجمیع المسلمین والمسلمات برحمتک یا ارحم الراحمین

---

نظم :

شکر شکر چه مکتوب شهٔ * دا کتاب په ښهٔ اسلوب شهٔ
دا کتاب اول طویل وو * ډیر په دهٔ کښے قال و قیل وو
طویل مرڅو که ډیر ښهٔ وی * بارے بیا ترے ملال زړهٔ وی
نور په حکم سا د خان * چه حافظ دے د قرآن
چه په هند کښے لکه نور دے * تمام هند پرے منور دے
شهامت پور ددهٔ وطن دے * ښهلی بیت اوس ئے مسکن دے
په ښهٔ خوئی خصلت موصوف دے * په وکړی کښے معروف دے
په هر علم کښے فهیم دے * ډیر په مشرعه مستقیم دے

شان شوکت ئے د امیر دے * خوئی خصلت ئے د فقیر دے
دا کتاب مے منتخب کړ * په ښهٔ شان مے مهذب کړ
هجر من مے هم حساب کړ * زړهٔ مے خلاص له پیچ وتاب کړ

۱۱۸۱

هجری من زرسل اتیا دی * یو کال بل هم پرے بالا دے
غره هم د محرم ده * دا رنگ یاد د معظم ده
نور که زیات له دے کښینه * فضولی به ښکاره شینه
خو بهتر ئے اوس دعا ده * چه د هر زحمت دوا ده
پاک مولیٰ د خان معین شه * د هر چا به دا آمین شه

## تمت تمام شهٔ

هذا الکتاب تواریخ حافظ رحمت خانی من تصنیف میان معظم شاه سرکار محمد عظیم الله خان بهادر خلف الصدق عمدة الامراء العظام اسوة الکبراء الفخام خان الخوانین معظمین ساکن روح عالیین دلاورالملک عزت الدوله دوندی خان ببهادر بهرام جنگ مغفور ومرحوم ـ

ـ کاتب الحروف ـ

میرزا محمد اسمعیل قندهاری بتاریخ ۲۶ ماه جولائی ۱۸۶۴ء

نقل د کتاب تاریخ حافظ رحمت خانی د فوتو ستیت کاپی نه دوه نسخے (یو کاربن دوئمه پنسل) په لاس د سناؤالدین کاکا خیل کاپښت پښتو اکیډیمی په ۱۰ اکتوبر ۱۹۶۷ء بمطابق ۵ رجب ۱۳۸۷ھ ختم شو ـ